

# ملي سرود

دا وطن افغانستان دی
کور د سولې کور د تورې
دا وطن د ټولو کور دی
د پښتون او هزاره وو
ورسره عرب، گوجر دي
براهوي دي، قزلباش دي
دا هېواد به تل ځلیږي
په سینه کې د آسیا به
نوم د حق مو دی رهبر

دا عزت د هر افغان دی
هر بچی یې قهرمان دی
د بلوڅو د ازبکو
د ترکمنو د تاجکو
پامیریان، نورستانیان
هم ایماق، هم پشه یان
لکه لمر پر شنه آسمان
لکه زړه وي جاویدان
وایو الله اکبر وایو الله اکبر

# د کتاب ځانګړتیاوې

---

مضمون: جغرافیه

مؤلفین: د تعلیمي نصاب د جغرافیه دیپارتمنت علمي او مسلکي غړي

اډیټ کوونکي: د پښتو ژبې د اډیټ د څانګې علمي او مسلکي غړي

ټولګی: اتم

د متن ژبه: پښتو

انکشاف ورکوونکی: د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تالیف لوی ریاست

خپروونکی: د پوهنې وزارت د اړیکو او عامه پوهاوي ریاست

د چاپ کال: ۱۳۹۸ هجري شمسي

د چاپ ځای: کابل

چاپخونه:

برېښنالیک پته: curriculum@moe.gov.af

---

## د پوهنې د وزير پيغام

## اقرأ باسم ربک

د لوی او ښښونکي خدای ﷻ شکر په ځای کوو، چې موږ ته يې ژوند رابښلی، او د لوست او ليک له نعمت څخه يې برخمن کړي يو، او د الله تعالی پر وروستي پيغمبر محمد مصطفیﷺ چې د الهي لومړنی پيغام ورته (لوستل) و، درود وايو.

څرنګه چې ټولو ته ښکاره ده ۱۳۹۷ هجري لمريز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، له دې امله به د ګران هېواد ښوونيز نظام، د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده‌کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدينو شوراګانې د هېواد د پوهنيز نظام شپږګوني بنسټيز عناصر بلل کيږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختيا او پرمختيا کې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونيز نظام کې د ودې او پراختيا په لور بنسټيزو بدلونونو ته ژمن دی.

له همدې امله د ښوونيز نصاب اصلاح او پراختيا، د پوهنې وزارت له مهمو لومړيتوبونو څخه دي. همدارنګه په ښوونځيو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونيزو تآسيساتو کې، د درسي کتابونو محتوا، کيفيت او توزيع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور يو، چې د باکيفيته درسي کتابونو له شتون پرته، د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلی نشو.

پورتنيو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونيز نظام د رامنځته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توګه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مديرانو څخه په درناوي هيله کوم، چې د هېواد بچيانو ته دې د درسي کتابونو په تدريس، او د محتوا په لېږدولو کې، هيڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي، او د يوه فعال او په ديني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې، زيار او کوښښ وکړي. هره ورځ د ژمنې په نوي کولو او د مسؤوليت په درک سره، په دې نيت لوست پيل کړي، چې د نن ورځې ګران زده‌کوونکي به سبا د يوه پرمختللي افغانستان معماران، او د ټولنې متمدن او ګټور اوسېدونکي وي.

همدا راز له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد ارزښتناکه پانګه ده، غوښتنه لرم، څو له هر فرصت څخه ګټه پورته کړي، او د زده کړې په پروسه کې د ځيرکو او فعالو ګډونوالو په توګه، او ښوونکو ته په درناوي سره، له تدريس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.

په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونيز نصاب له مسلکي همکارانو څخه، چې د دې کتاب په ليکلو او چمتو کولو کې يې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې دي، مننه کوم، او د لوی خدای ﷻ له دربار څخه دوی ته په دې سپېڅلې او انسان جوړوونکې هڅې کې بريا غواړم.

دمعياري او پرمختللي ښوونيز نظام او د داسې ودان افغانستان په هيله چې وګړي يې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

**د پوهنې وزير**

**دکتور محمد ميرويس بلخي**

# فهرست

# لومړی څپرکی

# اروپا

په دې څپرکي کې لاندې موضوعگانې لولو:

د اروپا لویه وچه و پېژنئ
جغرافیايي موقعیت او ځلور خواوې
طبیعي جغرافیه
الف- غرونه
ب- سیندونه
ج- جهیلونه
د- سمندرگي (بحیرې)
هـ- خلیجونه
و- اقلیم
سیاسي جغرافیه
بشري جغرافیه
اقتصادي جغرافیه
مواصلاتي جغرافیه



# د څپرکي موخې

ګرانو زده کوونکو! په دې څپرکي کې به لاندېنيو علمي موخو ته ورسېږئ:

ـ د اروپا د لويې وچې جغرافيايي موقعيت
ـ د اروپا د لويې وچې مهم غرونه
ـ د اروپا د لويې وچې مهم سيندونه
ـ د اروپا د لويې وچې مهم سمندرګي او جهيلونه
ـ د اروپا د لويې وچې خليجونه
ـ د اروپا د لويې وچې اقليم
ـ د اروپا د لويې وچې سياسي جغرافيه (سرحدونه او هېوادونه)
ـ د اروپا د لويې وچې بشري جغرافيه (نفوس، نژاد، ژبې او دين)
ـ د اروپا د لويې وچې اقتصادي جغرافيه (کرنه، صنعت، سوداګري او اړيکې)
ـ د اروپا مواصلاتي جغرافيه (ځمکنۍ، سمندري او هوايي ترانسپورت)

ګران زده کوونکي، کولای شي لاندې مهارتونه سرته ورسوي:

ـ د اروپا د لويې وچې نقشې رسمول او د سياسي پولو پېژندل.
ـ د اروپا د نقشې پر مخ د سيندونو او غرونو تشخيصول.
ـ د اروپا د لويې وچې د سياسي واحدونو پېژندل
ـ د اروپا د لويې وچې د نقشې پر مخ د مهمو کرنيزو توليداتو پېژندل.
ـ د اروپا د لويې وچې د نقشې پر مخ د مشهورو کانونو پېژندل.
ـ د اروپا د لويې وچې د نقشې پر مخ د مشهورو بندرونو پېژندل.

# د اروپا لویه وچه وپېژنئ




د اروپا جغرافيايي موقعيت

پورتني شکل ته وګورئ، کومو سمندرونو او سمندرګيو اروپا را چاپېره کړې ده؟

## جغرافيايي موقعيت او څلور خواوې

اروپا د نړۍ د کوچنيو لويو وچو له ډلې څخه ده چې په معتدله سيمه کې پرته ده. د دې لويې وچې شمال خواته شمالي منجمد بحر، جنوب خواته يې د مديترانې سمندرګی، ختيځ ته يې د آسيا پراخه لويه وچه چې د اورال غرونو، د اورال سيند، د کسپين سمندرګی، قفقاز غرونو او تور سمندرګي په وسيله له اروپا څخه بېله شوې او لوېديځ ته يې د اطلس اقيانوس (اتلانتيک سمندر) دی. (د ۵ مخ نقشه کې وګورئ.

ــ آيا د اروپا لويه وچه (براعظم) بېله وچه ده؟

اروپا د آسيا له لويې او پراخې وچې سره نښتې ده او له همدې امله يو شمېر جغرافيه پوهان، آسيا او اروپا يوه لويه وچه ګڼي او د يوريشيا په نامه يې يادوي.

د اروپا د لويې وچې پراخوالی ۱۰ ميليون کيلومتر مربع او په ۲۰۱۷ م کال کې يې د وګړو شمېر ۷۳۲ ميليونو تنو څخه زيات وو. ځينې مشهور صنعتي هېوادونه په دې لويه وچه کې پراته دي. د اروپا په قاره کې څو ټاپو وزمې شته دي، آيا کولی شئ هغه په نقشه کې پيدا کړئ او نومونه يې واخلئ؟

په مخامخ په نقشه کې د اروپا ټاپو وزمه کتلای شئ.
د اروپا لویه وچه د ماتو سواحلو، زیاتو سمندرګیو او خلیجونو د شته والي له امله چې په وچه کې ننوتي دي، زیات شمېر ټاپو وزمې رامنځته کړې دي چې موږ یې دلته د ځینو لویو ټاپو وزمو نومونه اخلو:



د اروپا د ټاپو وزمو نقشه

- د اسکاندیناویا ټاپو وزمه چې په هغې کې د ناروې او سویډن هېوادونه پراته دي.
- د بالکان ټاپو وزمه چې په هغې کې د البانیې، بلغاریې، بوسنیې او هرزګونې، صربستان، کرواسي او مونتنګرو هېوادونه موقعیت لري.
- د ایبري ټاپو وزمه چې په هغې کې د اسپانیې او پرتګال هېوادونه پراته دي.
د اپنین ټاپو وزمه چې په هغې کې د ایټالیا هېواد موقعیت لري.

## د ټولګي فعالیت

ښوونکی دې زده کوونکي په ډلو ووېشي، هره ډله دې د لوست د مهمو مطلبونو په هکله بحث او خبرې وکړي او د بحث پایله دې د ډلې استازی ټولګیوالو ته ووایي. همدارنګه د پورتنۍ نقشې له مخې، د ټاپو وزمو نومونه په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

## پوښتنې

متن ولولئ او لاندېنیو پوښتنو ته ځواب ووایاست:
۱ـ د یوریشیا له اصطلاح څخه موخه څه ده؟
۲ـ د اروپا لویه وچه په کومه اقلیمي سیمه کې موقعیت لري؟
۳ـ کوم غرونه د آسیا او اروپا د لویو وچو ترمنځ بېلوونکې طبیعي پوله پېژندل شوې ده؟

## کورنۍ دنده

د اروپا بې لیکنې (سپینه) نقشه رسمه کړئ په هغې کې جغرافیایي موقعیت، څلور خواوې او ټاپو وزمې په ګوته کړئ او د جغرافیې په راتلونکي درسي ساعت کې یې ټولګي ته ووایاست.

# د اروپا د طبيعي جغرافيې په هکله څه پوهېږئ؟

د اروپا طبيعي نقشي ته وګورئ او و وایئ چې غرونه د اروپا په کومه برخه کې موقعیت لري؟

## الف - د اروپا د لویې وچې غرونه

د اروپا لویه وچه، که څه هم زیاته پراخه نه ده، خو بیا هم د جغرافیایي بېلابېلو جوړښتونو او د سواحلو د ننوتو له امله د نړۍ له ټولو قارو څخه زیاته اوبوته لاره لري.

د اروپا په لویه وچه کې بیابانونه، بې اوبو او بې وښو دښتې نشته، خو د هغې پرځای زیاتره هوادونه د غرونو لویو او کوچنیو لړیو پوښلي دي چې ځینې یې د جیولوجي (ځمکې پېژندنې) په لومړۍ دورې پورې اړه لري.

د اروپا د لویې وچې غرونه، لوړې، ژورې په څو برخو وېشل شوې دي؟

د اروپا د لویې وچې په شمالي برخو کې غرونه د ځمکې پېژندنې د علم له نظره پخواني او لوړ نه دي او ګنبدي ډوله ښکارې لري. په دې سیمو کې پراخه چمنونه او ډېر جهیلونه لیدل کېږي. د اروپا دې سیمې ته چې په ډېره اوږده دوره کې سولېدلې، لوړوالی یې له منځه تللی او پرځای یې لړې لوړې او ژورې منځ ته راغلې دي د ځمکې پېژندنې له نظره ورته پخوانۍاروپا ویل کېږي ، لکه د فرانسې د ماسیف سنترال *Massif Central* د غرونو لړۍ چې د زړو غرونو په نوم شهرت لري. د اروپا په جنوبي سیمو کې دګونځې لرونکو لوړو غرونو لړۍ لیدل کېږي، په دې سیمو کې په واورو او کنګلونو پټې او تېرې ښکارې شته دي. د غرونو لمنې یې زیاتره سخت ځوړې لري. د الپ او پیرني غرونه په دې سیمه کې پراته دي. د دې غرونو په منځ کې ډېرځروبی او له اوبو څخه ډک سیندونه شته دي، د دې

سیندونو له پاسه د برېښنا لوی بندونه او دستګاوې جوړې شوې دي چې له انرژۍ څخه يې په صنعت او له اوبو څخه يې په کرنه کې ګټه اخیستل کېږي.

د اروپا جنوبي سیمو ته چې په هغې کې ګونځې لرونکي لوړ غرونه شته او اورغورځونې او زلزلې هم په کې رامنځ ته کېږي، ځوانه اروپا ویل کېږي.


ځواني لوړې ژورې د الپ له تېرو څوکو سره


د اروپا زړې او سولېدلې لوړې ژورې

## د ټولګي فعالیت

زده کوونکي دې په ډلو ووېشل شي، هره ډله دې د لوست مهمو موضوعاتو په هکله بحث او خبرې وکړي او د ډلې استازي دې، هغه په ټولګي کې ټولګیوالو ته وړاندې کړي.




## پوښتنې

۱- د الپ او د پیرني د غرونو لړۍ د اروپا د لوېې وچې په کومه برخه کې پرتې دي؟

۲- د اوبو د برېښنا لويې دستګاوې او بندونه د اروپا د کومو غرونو په لړیو کې جوړې شوې دي؟

۳- اروپا ولې بیابانونه او دښتې نه لري؟

## کورنۍ دنده

د اروپا سپینه (بې لیکنې) نقشه کاپي او په هغې کې د دوو غرونو لړۍ، يو سمندر او د يوې آبنا نوم چې د پوښتنې په نښې سره په ګوته شوي، ولیکئ.

# ب - سیندونه




د اروپا د سیندونو نقشه

د اروپا له سیندونو څخه څه ګټه اخیستل کېږي؟

د اروپا لویه وچه په شمالي معتدله سیمه کې پرته ده او ډېر اورښت لري، نو ځکه په دې لویه وچه کې ډېر سیندونه بهیږي. د ختیځې اروپا زیاتره سیندونه د روسیې په لوېدیځ کې د والدای له لوړې سطحې څخه سرچینه اخلي. هغه سیندونه چې په منځنۍ اروپا کې بهیږي، د الپ د غرونو له لړیو څخه سرچینه اخلي. د اروپا د دې برخې سیندونه د ځمکې د ساحې د لړوالي له امله مخکې تر دې چې دا سیندونه له یو بل سره یوځای شي، سمندرګیو ته تویږي. یوازې د ختیځې اروپا سیندونه د ځمکې د پراخوالي په سبب اوږده دي. ځینې سیندونه په جنوب کې د مدیترانې په سمندرګي کې تویږي، لکه د ایتالیې د هیواد د تیبر او پو *po* سیندونه.



ځينې نور سيندونه په لوېديځ کې د اطلس په سمندر کې توییږي، لکه په فرانسې کې د ګارون سيند او په انګلستان کې د ټايمز سيند او یا په ختيځه اروپا کې په تور سمندرګي کې توییږي، لکه د دانيوب سيند.
آیا کولای شئ د دانيوب، والګا، راین، الب اودن د سيندونو بهير په نقشه کې وښيئ؟
هغه سيندونه چې د اروپا په شمال کې بهيږي، څه ناڅه ټول کال منظم او له اوبو څخه ډک وي، خو هغه سيندونه چې د اروپا په جنوب کې بهيږي، په تودو موسمونو کې یې اوبه کميږي. د اروپا له سيندونو څخه زياتره د ځړوبولو او بېړيو چلولو لپاره ګټه اخيستل کېږي، خو له بده مرغه د دې سيندونو په غاړو د کارخانو او صنعتي فعاليتونو شته والی د هغو اوبو د ککړتيا سبب کېږي.
هغه مهم سيندونه چې په نومړو دريو حوزو کې توییږي، دا لاندې دي:

### ۱ ـ د دانيوب سيند

دا سيند د اروپا له مشهورو سيندونو څخه دی چې له څو هېوادونو څخه تېرېږي او په بېلابېلو نومونو سره، لکه: دوناهو، دونا، دوناچ، دونای او دوناريا يادېږي. دا سيند ۲۸۶۰ کيلومتره اوږد دی، په آلمان کې د تور ځنګل له غرونو څخه سرچينه اخلي او په تور سمندرګي کې توییږي، د دانيوب سيند د والګا له سيند څخه وروسته د اروپا مهم سيند دی او د لاتينې اروپا شمالي پوله جوړوي. دا سيند د المان، اتريش، صربستان (د پخوانی یوګوسلاويا یوه برخه)، هنګري، بلغاريې، رومانيې او سلواک له سرحدي پولې څخه تېرېږي.

### ۲- د ټايمز سيند

د ټايمز يا ټيمز Thames سيند چې د انګلستان په جنوب لوېديځو سيمو کې بهېږي، د دې هېواد د پلازمېنې لندن له منځنی برخې څخه تېرېږي او د شمال سمندرګي د ټايمز په خليج کې توییږي. د دې سيند اوږدوالی ۳۴۴ کيلومتره دی. څرنګه چې دا سيند په اوارو سيمو کې بهېږي، نو د بېړۍ چلولو وړتيا هم لري.

په لندن کې د ټايمز سيند





په اروپا کې د راین د سیند یوه برخه

## ۳_ د راین سیند

دا سیند د سویس هېواد له غرونو څخه سرچینه اخلي او د فرانسې او المان له سرحد څخه تر تېرېدو وروسته له المان څخه هالنډ هېواد ته ننوځي او د شمال په سمندرگي کې تویېږي. د اروپا دغه نور لاندې لوی او کوچني سیندونه هم په نوموړو درې گونو حوزو کې تویېږي.

لومړی گڼه جدول: د اروپا د نورو سیندونو نومونه:

| گڼه | د سیند نوم | اوږدوالی په کیلو متر | مصب (خوله) |
|---|---|---|---|
| ۱ | ولگا | ۳۴۹۰ | د کسپین سمندر گی |
| ۲ | اورال | ۲۳۹۶ | د کسپین سمندر گی |
| ۳ | دنیپر | ۲۰۰۰ | تورسمندر |
| ۴ | دن | ۱۹۶۰ | د آزوف سمندر گی |
| ۵ | ویستولا | ۱۰۷۰ | د بالتیک سمندر گی |
| ۶ | پچورا | ۱۸۴۱ | د بارنتس سمندر گی |
| ۷ | لوار | ۱۰۰۰ | د اطلس سمندر |

## د ډلګي فعالیت

زده کوونکي دې په ډلو وویشل شي او هره ډله دې د یوه سیند د ګټې او اقتصادي ارزښت په هکله بحث او خبرې وکړي او د بحث پایله دې ډلګیوالو ته وړاندې کړي.

## پوښتنې

د سمو جملو په مخ کې د (س) توری او د غلطو جملو په مخ کې د (ن) توری ولیکئ.

۱- هغه سیندونه چې په شمالي اروپا کې بهېږي، د کال په تاوده موسم کې یې اوبه کمېږي ( ).

۲- د دانیوب سیند د اروپا ډېر اوږد سیند دی ( ).

۳- د اروپا د صنعتي هېوادونو د زیاترو سیندونو اوبه ککړې دي ( ).

٤- ولګا د اروپا ډېر اوږد سیند دی ( ).

٥- هغه سیندونه چې د اروپا په جنوب کې بهېږي، د کال په تودو موسمونو کې یې اوبه کمېږي ( ).

## کورنۍ دنده

د اروپا بې له لیکنې (سپینه) نقشه کاپي یا رسم کړئ او په هغې کې د اروپا مهم سیندونه په نښه او د جغرافیې په راتلونکي درسي ساعت کې یې د ټولګي مخې ته وښیئ.

د اروپا بې لیکنې (سپینه نقشه) د زده کوونکو خوابونو لپاره

# د اروپا د جهیلونو په هکله څه پوهیږئ؟




د ځمکې د وچې لویې ژورې چې له اوبو څخه ډکې شوې وي، په کوم نوم یادیږي؟
له جهیلونو څخه څه اقتصادي گټه اخیستل کېدای شي؟

## ج- جهیلونه

د ځمکې طبیعي لویې ژورې چې له اوبو څخه ډکې شوې وي او څلورو خواوو ته یې وچه وي، د جهیل، کول او ولاړو اوبو په نوم یادیږي.

د ځینو جهیلونو اوبه مالگینې او د یو شمېر نورو اوبه خوږې او رڼې وي. د معتدلو او باراني سیمو د جهیلونو اوبه چې اروپا هم په هغې کې شامله ده، معمولاً خوږې وي.


د اروپا غرنی کوچنی جهیل

د اروپا د لویې وچې په زیاترو سیمو کې ځینې جهیلونه شته دي چې د پراخوالي، ژورتیا او له سمندر څخه د لوړتیا له امله سره توپیر لري. د دې جهیلونو زیات شمېر د اروپا په شمال کې د اسکاندیناویا په ټاپو وزمې او د روسیې په لوېدیځ کې پراته دي. د بېلگې په توگه: د فنلنډ $\frac{1}{10}$ برخه خاوره جهیلونو نیولې ده چې زیاتره یې د هېواد په جنوب کې موقعیت لري او له همدې امله

فنلنډ د زرو جهيلونو د هېواد په نوم ياد شوی دی.

د دې لويې وچې څه ناڅه ټول جهيلونه خوږې اوبه لري او د سيندونو سرچينه جوړوي.

زياتره لوی او ژور جهيلونه د ډول، ډول سمندري ژوو او نباتاتو د ودې لپاره ښه شرايط برابروي او شاوخوا اوسېدونکي يې د کبانو په نيولو، کوچنيو بېړيو او د کبانو د جالونو په جوړونې بوخت دي. ځينو جهيلونو د ښکلو منظرو، تفريحي سيمو او د هوټلونو په جوړونې او د توريزم په صنعت کې بنسټيز رول لوبولی دی.

| ګڼه | د جهيل نوم | د جهيل موقعيت | د جهيل ډول |
|---|---|---|---|
| ۱ | سايما (Saimaa) | د فلنډ په جنوب کې | يخچالي |
| ۲ | پايي جان (Paijanna) | د فلنډ په جنوب کې | يخچالي |
| ۳ | لادوګا (Ladoga) | د اروپايي روسيې په لوېديځ کې | يخچالي |
| ۴ | انګا (Onega) | د اروپايي روسيې لوېديځ کې | يخچالي |
| ۵ | جينيوا (Geneva) | په سويس په کې | يخچالي غرنی سيمه |
| ۶ | کونستانس (Konstanz) | په سويس کې | يخچالي غرنی سيمه |
| ۷ | بالتون (Bolton) | په هنګري کې | تکتونيکي |

دوهمه ګڼه جدول د اروپا نور مهم جهيلونه (اضافي معلومات)

## د ټولګي فعاليت

زده کوونکي دې په ډلو کې تنظيم شي، ټولې ډلې دې لاندې پوښتنې ته د يو بل په مشوره د اروپا د طبيعي نقشې پربنسټ ځواب برابر کړي او د هرې ډلې استازی دې، هغه ټولګيوالو ته وښيي.

- د اروپا د لويې وچې د لويو جهيلونو موقعيت په نقشه کې معلوم کړئ؟

## پوښتنې

- له څلور ورکړل شوو ځوابونو څخه سم ځواب غوره او په خپلو کتابچو کې يې وليکئ.

۱- هغه هېواد چې هغه ته د زرو جهيلونو د هېواد نوم ورکړل شوی دی:

الف) سويډن ب) ناروې ج) هنګري د)فنلنډ

- لنډ ځواب ورکړئ

۲- جهيل تعريف کړئ؟

۳- د معتدله او باراني سيمې د جهيلونو د اوبو خوند څرنګه دی؟ ولې؟

## کورنی دنده

د خپلې کورنۍ په مرسته د لاندې پوښتنې ځواب برابر کړئ:

آيا زموږ په هېواد کې جهيل شته دی؟ او که چېرې وي، نو نوم يې له اړوند ولايت او همدارنګه له هغو څخه د ګټې اخيستلو د څرنګوالي په هکله لنډ معلومات وليکئ؟

# د- د اروپا د سمندرګيو (بحيرو) په هکله څه پوهېږئ؟




د اروپا د سمندرګيو نقشه

پورتنۍ نقشه په ځير سره وګورئ، ولې د اروپا په لويه وچه کې ډېر سمندرګي شته دي؟

د اروپا د لويې وچې ډېر لوی سمندرګی د مديترانې سمندرګی دی چې د خپل ځانګړي موقعيت له امله د درېو لويو وچو (آسيا، اروپا او افريقا) ترمنځ پروت دی. ټول کال د بېړۍ چلولو وړ دی او د سويز کانال په کيندلو سره، دې سمندرګي د اتلانتيک سمندر د هند له سمندر سره نښلولی او د نړۍ د سوداګريزو مالونو ډېره برخه له دې لارې لېږدول کېږي. د جبل الطارق لږې ژورې ابنا د مديترانې سمندرګی د اتلانتيک له سمندر سره نښلولی دی.

د مديترانې د سمندرګي غاړې ډېرې وتلې او ننوتلې دي چې د دې سمندرګي ټول ټاپوګان او ټاپووزمې يې په بېلو بېلو برخو وېشلي دي او هر يو د بېل سمندرګي په نوم يادېږي، لکه د ادرياتيک Adriatic، تيرنين Tyrrhenian اژه Aegean او داسې نور سمندرګي.

د داردانيل Dardanelle منحني شکله اوږده آبنا د مديترانې سمندرګي د مرمرهMarmora کوچني سمندرګي او د باسفورس Bosporus آبنا د مرمره سمندرګي له تور سمندرګي سره نښلوي چې ځانګړې اقتصادي او ستراتيژيکي ارزښت لري.

د انګلستان او فرانسې د هېوادونو ترمنځ د مانش سمندرګی یا English Channel پروت دی چې د لوېدیځې او جنوبي اروپا او د افریقا د لویې وچې ترمنځ د ورلو او راوړلو لویه لاره جوړوي. د مانش د سمندرګي په شمال کې د شمال سمندرګی پروت دی چې د اتلانتیک د سمندر یوه برخه ګڼل کېږي. ژورتیا یې لږه او د کبانو د ښکار، د بېړیو چلولو، د نفتو او طبیعي ګاز د را ایستنې لپاره یې ښه چاپېریال جوړ کړی دی.

د ناروې سمندرګی هم لږه ژورتیا لري، د کبانو د روزنې لپاره یې ښه چاپېریال جوړ کړی دی. د بالتیک سمندرګی د سکاندیناویا د ټاپووزمې په ختیځ او جنوب کې پروت او د بېړیو چلولو وړ دی.

د اروپا شمالي سمندرګي، لکه بارنتس، سره له دې چې شمالي منجمد سمندر ته نژدې پرتې دي، د کال په اوږدو کې کنګل وي، خو د ګلف ستریم د تود بهیر له امله د بېړیو چلولو وړ دی. په ناروې کې د تروندهیم Trondheim او برګین Bergen بندرونه او د روسیې Archangelsk ارخانګلسک بندر چې په دې حوزه کې یوازیني د بېړیو چلولو بندر دی، د یادولو وړ دی.



### د ټولګي فعالیت

زده کوونکي دې د بېلابېلو سویو له مخې، په ډلو ووېشل شي او هره ډله دې د اروپا له نقشې څخه په ګټې اخیستنې سره، لاندېنیو پوښتنې ته ځواب برابر کړي.

١- د سویز کانال کومې بحیرې (سمندرګي) سره نښلوي؟

٢- د اروپا په شمال کې لوی بندرونه کوم دي؟ هغه په نقشه کې پیدا او خپلو ټولګیوالو ته یې وښیئ؟

٣- د باسفورس او دردانیل د آبناګانو موقعیت په نقشه کې وښیئ؟



### پوښتنې

١- د مدیترانې سمندرګی د کومو لویو وچو ترمنځ بېلوونکی حد او پوله جوړوي؟

٢- د اروپا د لویې وچې په شمال کې کوم سمندرګی پروت دی، نوم یې ولیکئ؟

٣- کومه آبنا د مدیترانې سمندرګی د اتلانتیک له سمندر سره نښلوي؟

لاندې جمله بشپړه کړئ:

٤- د سویز د کانال په کېندلو سره د اتلانتیک سمندر د ...... او ........ سمندرګیو له لارې د هند سمندر سره نښلول شوی دی.



### کورنی دنده

د اروپا بې لیکنې (سپینه) نقشه له (١٠) مخ څخه رسم کړئ او د سمندرګیو نومونه یې په ټاکلو ځایونو کې ولیکئ.

شپږم لوست:

# هـ ـ د اروپا د لويې وچې د خليجونو په هكله څه پوهېږئ؟




د اروپا د خيلجونو نقشه

په سواحلو كې د اوبو زيات ننوتل چې دربيو خواوو ته يې وچه او يوه خوا يې اوبه وي، په كوم نومه يادېږي؟

له خليجونو څخه څه اقتصادي ګټې اخيستل كېداى شي؟

د اروپا د لويې وچې ځانګړى جغرافيايي موقعيت د شمالي كنګل سمندر، د اتلانتيك سمندر او د مديترانې سمندرګي ترمنځ د ټاپو وزمې په بڼه او د بالتيك سمندرګي موقعيت د وچې په دننه كې د ډېرو خليجونو د منځ ته راتګ سبب شوي دي.

لويو او ژورو خليجونو د بندرونو جوړونې ته طبيعي ښه شرايط برابر كړي دي ځكه له همدې لارې لويې بېړۍ سواحلو ته نږدې كېږي او له سمندري قوي څپو څخه ژغورل كېږي، د بارولو او خالي كولو لپاره پوره وخت لري او په لنګر اچونه كې اسانتياوې رامنځ ته كوي. هغه ساحلي هېوادونه چې دا ډول شرايط ولري په طبيعي توګه له اضافي لګښتونو پرته د بندرونو جوړونې لپاره ورڅخه ګټه اخيستلاى شي.خو هغه ساحلي هېوادونه چې دا ډول خليجي ښه شرايط نه لري، د بندر جوړونې لپاره ډېرو لګښتونو ته اړتيا لري.

د اروپا صنعتي هېوادونو د پرمختګ يو علت هم نړيوالو اوبو ته لاره (لاسرسى) او د بېړيو چلولو وړ بې شمېره خليجونو موجوديت دى چې له هغې لارې كولاى شي له سلو څخه زياتو ساحلي هېوادونو

سره سوداګريزې اړيکې ټينګې کړي.

کوچنيو خليجونو هم د ډېرو خوراکي موادو او لږو ژورو او نسبتاً ارامو اوبو په درلودلو سره، د سمندري ډول ډول ژوو د روزنې لپاره ښه شرايط برابر کړي دي. له همدې کبله، دا خليجونه، د کبانو ښکار او تر اوبو لاندې ځمکې يې د کانې زېرمو پلټلو لپاره په ځانګړي ډول د نفتو او طبيعي ګازونو له پلوه ډېر ارزښت لري، خو د لويو بېړيو د چلونې لپاره د ګټې اخيستنې وړ نه دي.

درېمه ګڼه جدول د اروپا د لوېې وچې مهم خليجونه (د مطالعې لپاره دي)

| ګڼه | د خليج نوم | د بندر نوم | د بندر موقعيت |
|---|---|---|---|
| ۱ | تريست (Trieste) | تريست | د ادرياتيک د سمندرګي په شمالي غاړه کې |
| ۲ | تارنتو (Taranto) | تارنتو | د ايټاليا په جنوب د مديترانې د سمندرګي په غاړه |
| ۳ | جينوا (Geneva) | جينوا | دايټاليا په شمال لوېديځ کې دمديترانې سمندرګي په غاړه |
| ۴ | ليون (Lion) | تولون | د فرانسې په جنوب کې د مديترانې سمندرګي په غاړه |
| ۵ | بيسکي (Biscay) | بوردوکس | د فرانسې په لوېديځ کې د اتلانتيک سمندرپه غاړه |
| ۶ | ريګا (Riga) | ريګا | د ليتوانيا په لوېديځ کې د بالتيک سمندرګي په غاړه |
| ۷ | فنلنډ | تالين (Tallinn) | د استونيا په لوېديځ کې |
| ۸ | بوتوني (Bothoni) | تورکون | د سوېډن په ختيځ کې |

## په ټولګي کې فعاليت

ښوونکی دې د بېلابېلو سويو زده کوونکي په څو ډلو ووېشي او هره ډله دې د اروپا د نقشې له مخې له لاندېنيو پوښتنو څخه يوې پوښتنې ته ځواب ورکړي او د ډلې استازی دې ټولګيوالو ته ولولي.

۱- د مديترانې د سمندرګي پر غاړه خليجونه په نقشه کې پيدا او موقعيت يې تثبيت کړئ؟

۲- د اتلانتيک سمندر د ختيځې غاړې خليجونه په نقشه کې پيدا او موقعيت يې تثبيت کړئ؟

۳- د بالتيک د سمندرګي پر غاړو خليجونه په نقشه کې پيدا او د هغو موقعيت تثبيت کړئ؟

## پوښتنې

سم ځوابونه د (س) په توري او ناسم ځوابونه د (ن) په توري نښه کړئ.

۱- بندر د سمندر يا سمندرګي پر غاړې هغه ځای دی چې مسافرتونه، صادرات او واردات ورڅخه ترسره کېږي (     ).

۲- خليج له اوبو څخه ډکې، ديوې لوېې او ژورې کندې څخه عبارت دی چې څلورو خواوو ته يې وچه وي (     ).

لنډ ځواب ورکړئ:

۱- د اروپا د لوېې وچې د جنوبي لويو خليجونو نومونه ووايئ.

۲- کوم خليجونه په طبيعي توګه د بندري تاسيساتو جوړونې ته برابر دي؟ او ولې؟

## کورنی دنده

د اروپا بې ليکنې نقشه له (۱۰) مخ څخه کاپي يا رسم کړئ او په هغې کې د اروپا د لويو خليجونو نومونه په ټاکلو ځايونو کې وليکئ.

اروپا ولې ډول ډول اقليمونه لري؟

# و- د اروپا لويه وچه څرنګه اقليم لري؟




آيا پوهېږی چې د اروپا کومه برخه وچ او بري اقليم لري؟ د اروپا د اقليم د ډولونو نقشه

د اروپا د لويې وچې اقليم په څو علتونو د هغو وچو په پرتله چې په ورته جغرافيايي عرض البلد کې موقعيت لري، معتدل دی.

له همدې امله، وچ او تاوده بيابانونه او په ختيځه برخه کې زيات تېز بارانونه نه ليدل کېږي.

- د اروپا لويه وچه په معتدله سيمه کې موقعيت لري او لږه برخه يې په قطبي سيمه کې پرته ده.
- د دې وچې له دريو خواوو يعني شمال، جنوب او لوېديځې خوا، اوبه چاپېره شوې دي، چې له امله يې ټوله اروپا د پوره مرطوبې او لنده بلې هوا څخه اغېزمنه کېږي.
- د اروپا لويې وچې غرونه دومره لوړ نه دي چې د اروپا دننۍ برخې ته د اطلس سمندر او د مديترانې د سمندرګي د لنده بل د ننوتلو خنډ وګرځي.
- څلورم علت يې د ګلف ستريم (د سمندري تودو اوبو بهير) شته والی دی چې د اروپا له لوېديځو برخو څخه تېرېږي او د اروپا د دې برخې د هېوادونو اقليم د معتدله کېدو سبب کېږي.

د اروپا د لويې وچې اقليم په عمومي توګه په څلورو لويو اقليمي سيمو وېشل کېږي چې

عبارت دي له:

## الف- جنوبي (مدیترانه یي) سیمه

په دغه برخه کې د اروپا جنوبي سیمه شامله ده، چې د مدیترانې د سمندرګي په غاړو کې موقعیت لري او مدیترانه یي اقلیم لري، دا اقلیم دوه ځانګړتیاوې لري:

- ژمی یې معتدل او باراني وي.
- اوړی یې تود او وچ وي.

د دې سیمې رطوبت او لنده بل د اروپا د لوېدیځې غاړې د هېوادونو په پرتله لږ دی او ډېر اورښت یې د منې او ژمي په موسمونو کې وي.

## ب- د اتلانتیک سمندر ګاونډۍ سیمې:

دې سیموکې د انګلستان او ایرلنډ هېوادونه شامل دي چې د اتلانتیک سمندر په سیمه هم شهرت لري. د دې سیمې هوا په ژمي او اوړي کې معتدله او ملایمه ده او څرنګه چې نوموړې سیمه د اتلانتیک سمندر د بادونو په لوري کې پرته ده، نو ډېر لنده بل لري او د اروپا ډېره باراني سیمه ګڼل کېږي، ځکه نو په ټولو موسمونو او په ځانګړي ډول په ژمي کې ډېر باران اوري. دا سیمه د کال په زیاترو وختونو کې وربځې او لړې لري.

د نباتاتو د ډولونو نقشه



### ج- مرکزي وچه (بري) برخه

په دې برخه کې مرکزي او ختيځه اروپا شامله ده. څرنګه چې په دې سيمه کې د هوا لنده بل لږ دی، نو د اوړي او ژمي د تودوخې په درجه کې يې ډېر توپير شته. يعنې په اوړي کې يې هوا ډېره توده او په ژمي کې ډېره سړه ده. دا سيمې د اتلانتيک د سمندر او د مديترانې له سمندرګي څخه د لېرېوالي او د لنده بل د لږوالي له امله قاره يي يا بري (وچه) اقليم لري. د اورښت کچه يې لږه او هغه هم د اوړي په فصل کې لږ باران په کې اوري.

### د- شمالي (قطبي) برخه

په دې برخه کې روسيه او د اسکانديناويا ټاپووزمې زياته برخه شامله ده. اقليم يې له قطبي سيمې څخه د نژديوالي په سبب ډېر سوړاو وچ دی. په دې برخه کې واورې له باران څخه زياتې اورې او د زيات سوړوالي له امله يې سيندونه او سمندرګي د کال په اوږدو کې له ۵ تر ۸ مياشتو کنګل وي. په دې اقليمي سيمه کې کله کله د اروپا شمالي، مرکزي او ختيځې برخې هم شاملېږي.

په عمومي توګه، د اروپا نمجنې برخې د لوېديځې اروپا هېوادونه دي او زياتره د اطلس سمندر د نمجنو بادونو په لوري کې واقع شوي دي، نو ځکه په همدې سيمه کې ډېر باران اوري. د اروپا وچې برخې هم د ختيځې او منځنۍ اروپا هېوادونه دي، لکه د هنګري د هېواد په څېر چې د اطلس سمندر او د هغه له نمجنو بادونو څخه ډېر لرې دی، نو له لږ لنده بل څخه برخمن دی او باران په دې هېوادونو کې له نورو برخو څخه ډېر لږ وي، نو په ژمي کې ساړه او په اوړي کې تاوده وي.

### بادونه

### منځنۍ او شمالي اروپا

دا سيمې د لوېديځو بادونو په لوري کې چې د اطلس سمندر له خوا را الوځي ، واقع شوې دي او په ژمي کې هم په دې سيمو کې قطبي ساړه بادونه لګېږي.

### مديترانه يي اروپا

دا سيمې د سړو او تودو بادونو په لوري کې پرتې دي. په اوړي کې تاوده او وچ بادونه چې د افريقا د لويې صحرا له لوري را لګېږي اوپه ژمي کې ساړه بادونه چې د الپ د غرونو له خوا را لګېږي، دا سيمې اغېزمنوي.

د مدیترانې په حوزه کې د بادونو لوری



### د ټولګي فعالیت

زده کوونکي دې په ډلو ووېشل شي او هره ډله دې د نقشې له مخې د اروپا اقلیم توضیح کړي، همدارنګه دې ووایي چې لاندې هر یو هېواد څه ډول اقلیم لري؟

فنلنډ ( )

ایټالیا ( )

انګلستان( )

ایرلنډ ( )

ایسلنډ ( )

### پوښتنې:

۱- مدیترانه یي اقلیم څه ځانګړتیاوې لري؟

۲- د اتلانتیک سمندر ګاونډۍ سیمې څه ډول اقلیم لري، شرحه یې کړئ؟

۳- د اروپا د شمالي سیمو د اقلیم په هکله څه پوهېږئ، توضیح یې کړئ؟

### کورنۍ دنده:

هغه څه مو چې له تېرو لوستونو څخه زده کړي، د قاره یي یا بري اقلیم د ځانګړتیاوو په هکله یې معلومات ولیکئ اودلیلونه راوړئ چې ولې منځنۍ او ختیځه اروپا دا ډول اقلیم لري؟

# د اروپا د سیاسي جغرافیې په هکله څه پوهېږئ؟




د اروپا د لویې وچې د هېوادونو سیاسي نقشه

پورته نقشې ته وګورئ چې کوم هېوادونه سمندرګیو او سمندرونو ته لار نلري.

اروپا د پخوانۍ نړۍ له دریو لویو وچو څخه ده چې د شمالي نیمې کرې د شمالي عرض البلد د ۳۵ او ۸۰ درجو او د ختیځ طول البلد د ۶۰ درجو او د لوېدیځ طول البلد د ۲۵ درجو ترمنځ موقعیت لري. ختیځه لېرې نقطه یې د اورال غرونه او د اورال سیند، لوېدیځه لېرې نقطه یې د ایسلینډ لوېدیځه برخه، شمالي لېرې نقطه یې د ناروې د هېواد شمالي برخه او جنوبي لېرې نقطه یې د کریت ټاپو دی. اوږدوالی یې له شمال څخه تر جنوب پورې ۶٤۰۰ کیلومتره او سور یې له ختیځه تر لوېدیځه پورې ٤۸۰۰ کیلومتره دی.

## پولې (سرحدونه)

اروپا له دریو خواوو څخه د نړۍ د لویو اوبو په واسطه را چاپېره شوې او د آسیا د لویې وچې په پرتله کوچنۍ ټاپو وزمه ده چې د شمال له خوا په شمالي منجمند سمندر، د جنوب له خوا د مدیترانې په سمندرګي، تورسمندرګي، کسپین سمندرګي او ختیځ له خوا د آسیا په لویې وچې پورې چې د اورال سیند او اورال غر دا دواړه وچې سره بېلوي، نښتې ده.

- خرنگه کولای شو د اروپا د لویې وچې سیاسي واحدونه سره وویشو؟
- نقشې ته ځیر شئ او د اروپا سیاسي واحدونه وښیئ؟

د اروپا د لویې وچې د سیاسي واحدونو شمېر ٤٧ هېوادونو ته رسېږي. له هغو څخه ۹ هېوادونه یې په وچه کې پراته دي او اوبو ته لار نه لري، لکه د سویس، لوکزمبورک، سلونیې، صربستان، مقدونیې، اتریش، هنګري، سلواک، چک او داسې نور هېوادونه. همدارنګه په دې لویه وچه کې د خاورې د پراخوالي له پلوه ۹ کوچني هېوادونه، لکه: لوکزامبورک، مالتا، لختن شتین، اندورا، مونتینګرو، سلوانیا، سان مارینو، موناکو او واتیکان هم شته.

هغه اروپايي هېوادونه چې سمندر ته لار نه لري




## (د مطالعې لپاره اضافي معلومات)

## د اروپا اتحادیه:

دا اتحادیه په ۱۹۵۷ م کال کې منځ ته راغله چې په لومړیو کې یې بلجیم، لوېدیځ المان، هالنډ، لوکزامبورک، فرانسه او ایټالیا غړي هېوادونه وو، خو اوس ۲۷ غړي هېوادنه لري.

د دې اتحادیې د منځته راتللو موخه عبارت ده له:

ـ د ګډون کوونکو هېوادونو ترمنځ د مالي او اقتصادي مرستو لازیاته پراختیا.

ـ په دفاعي او بهرنیو چارو کې د ګډ سیاست رامنځ ته کول.

ـ د ګډون کوونکو هېوادونو دننه په عدلي چارو کې مرسته کول.

په ۱۹۹۹ م کال کې د غړو هېوادونو ترمنځ په راکړه ورکړه او بانکي معاملو کې اروپايي پولي واحد يورو رواج شو.

د اروپا سياسي واحدونه په لاندې ډول وېشلای شو.

ـ د شمالي اروپا هېوادونه، لکه: سويډن، ناروې، فنلنډ، ايسلينډ او ډنمارک.

ـ د جنوبي اروپا هېوادونه، لکه: ايټاليا، يونان، اسپانيه، پرتگال او نور.

ـ د ختيځې اروپا هېوادونه، لکه: روسيه، سپينه روسيه، اوکراين او نور.

ـ د لوېديځې اروپا هېوادونه، لکه: المان، فرانسه، انگلستان، هالنډ، بلجيم او نور.

ـ د منځنۍ اروپا هېوادونه، لکه: اتريش، چک، پولينډ او نور.

د اروپا لويې وچې په دې برخه کې د هېوادونو ترمنځ گمرکي پولې نشته او سياسي اړيکې يې د يوه تړون له لارې چې د اروپا اتحاديه يې بولي، سرته رسېږي.



د اروپا د لويې وچې سيمه ييز وېش

د د اروپا جغرافيايي کلتوري وېش



## د ډولګي فعالیت

زده کوونکي دې په ډلو وویشل شي، هره ډله دې د لوست په مهمو ټکو بحث وکړي او د بحث پایلې دې ټولګیوالو ته وړاندې کړي.



## پوښتنې

د لوست له متن څخه په ګټې اخیستنې سره لاندې پوښتنې بشپړې کړئ:

۱- اروپا د ........... له ...................لویو وچو څخه ده؟

۲- اروپا د شمالي عرض البلد د ............. او د.................. درجو ترمنځ پرته ده؟

۳- د اروپا ختیځه لیرې نقطه........... لوېدیځه لیرې نقطه یې............. شمالي لیرې نقطه یې............. او جنوبي لیرې نقطه یې ...................... ده.



## کورنۍ دنده

د اروپا سیاسي نقشه رسمه کړئ او په هغې کې د هېوادونو او د هغو د پلازمېنو نومونه ولیکئ.

نهم لوست

# د اروپا د بشري جغرافيې په هکله څه پوهېږئ؟




په اروپا کې د نفوسو د ویش نقشه

آیا پوهېږئ چې د اروپا لویه وچه د لږ پرا خوالي په سبب د نړۍ د نفوسو ډکو قارو څخه ده؟

د اروپا په لویه وچه کې د طبیعي ښو شرایطو، یعنې پراخو خړځایونو، د اوبو ډکو سیندونو، معتدل اقلیم او پوره اورښت د شته والي له امله د صنعت او پوهې پراختیا، د اقتصادي فعالیتونو او کارونو امکانات ښه برابر شوي دي، نو په همدې دلیل، د اروپا په زیاترو برخوکې زیات وګړي مېشت شوي دي، خو بیاهم دا اوسېدل د اروپا د لویې وچې په ټولو برخو کې یو ډول نه دي.

د اروپا په شمالي سیمو، لکه: روسیه او سکاندیناوي هېوادونو کې د هوا د زیات سوړوالي له امله لږ وګړي ژوند کوي. په داسې حال کې چې د مدیترانې سمندرګې ته نژدې هېوادونه او همدارنګه منځنۍ او لوېدیځه اروپا کې ډېر خلک ژوند کوي.

د اروپا زیاتره خلک په کومو سیموکې اوسي؟ او ولې؟



په اروپا کې د لږ نفوس لرونکې سیمې انځور



په اروپا کې د لندن د نفوسو ډک ښار

۱- د اروپا د وګړو زیاته برخه د سیندونو په غاړو، صنعتي مرکزونو په شاوخوا او کرنیزو ښو ځمکو کې لیدل کېږي.

۲- سره له دې چې د اروپا لویه وچه د نړۍ د ډېرو نفوسو لرونکو لویو وچو څخه ده، خو د نفوسو وده یې لږه ده، ځکه چې ډېرې کورنۍ، په ځانګړي ډول په صنعتي هېوادونو کې د زیاتو اولادونو له درلودلو سره مینه نه لري، نو ځکه په اروپايي ځینو هېوادونو، لکه المان او ایټالیا کې د نفوسو وده په ډېرې چټکۍ سره مخ په کمېدو ده.

## د خلکو ډلې

د اروپا د خلکو ډېره ستره ډله روسان دي چې د اروپا د خلکو لويه ټولنه جوړه وي. له روسانو څخه وروسته په اروپا کې د خلکو بله لويه او مهمه ډله جرمنيان دي چې زياتره په منځنۍ اروپا (المان، اتريش او سويس) کې اوسي او وروسته بيا په ترتيب سره لاتين، فرانسوي او انګلوساکسون ډلې دي چې هره يوه يې د اروپا د خلکو زياته برخه جوړوي.

روسی څېره



جرمنی ښځه



### د ټولګي فعالیت

زده کوونکي دې د ښوونکي تر لارښوونې لاندې په ډلو ووېشل شي او هره ډله دې د نفوسو د وېش او د خلکو د ډلو په هکله بحث او خبرې وکړي او پایله دې د ډلې استازی ټولګیوالو ته وړاندې کړي.

### پوښتنې

د سم ځواب په مخ کې د (س) توری او ناسم ځواب په مخ کې د (ن) توری ولیکئ.

۱- د اروپا د وګړو زیاته برخه د سیندونو په غاړو، صنعتي مرکزونو او کرنیزو برخو کې استوګنه کوي.

۲- د اروپا په ټولو برخو کې د خلکو استوګنه، د طبیعي ښو شرایطو، له اوبو ځخه د ډکو سیندونو، معتدل اقلیم د صنعت او علم د پراختیا له امله یو شانته ده.

۳- د اروپا د لویې وچې د خلکو مهمه او لویه ډله روسان دي.

### کورنۍ دنده

د اروپا د لویې وچې له لیکنې پرته نقشه رسم کړئ او په هغې کې د وګړو وېش او ګڼوالی په ځانګړي رنګ سره وښیئ.

لسم لوست

# د اروپا د لویې وچې د ژبې او نژاد په هکله څه پوهېږئ؟




آیا پوهېږئ چې د اروپا خلك له کوم نژاد څخه دي؟

د اروپا د لویې وچې د وګړو ډېره برخه سپین پوستي جوړوي. سپین نژاد په دې لاندې دریولویو ډلو وېشل کېږي:

## ۱- جنوبي قومونه

جنوبي قومونه له یوناني یا لاتیني څخه عبارت دي، چې د خړو رنګ یې غنم رنګه دی. دا قومونه د ایټالیا په جنوب لوېدیځ کې د بالکان په ټاپو وزمې، هسپانیې، پرتګال او بلجیم هېوادونو کې استوګن دي.

## ۲- جرمني قومونه

دا قومونه زیاتره په منځنۍ او شمال لوېدیځه اروپا کې استوګن دي، په انګلستان کې انګلوساکسون او په بلجیم کې فلامند اوسېږي، هالندیان، المانیان، سویډنیان، ناروېژیان، ډنمارکیان او د سویسیانو یوه برخه هم له دې جملې څخه ګڼل کېږي.

## ۳- ختیځ قومونه یا سلاویان

دا قومونه زیاتره سپین رنګ او طلایي وېښتان لري او زیاتره په ختیځه اروپا کې اوسېږي چې د

پولینډیانو، چکیانو، سلواکیانو، صربیانو او کرواتیانو (پخوانی یوګوسلاویا) څخه عبارت دي چې زیاتره یې د ختیځې اروپا اوسېدونکي دي. دا خلک د هنګري خاورې له شمال څخه جنوب ته تېر شوي او منځنۍ اروپا ته یې لاره موندلې ده. له پورتنیو درې ګونو قومونو سربېره چې یادونه ترې وشوه، کوچني پخواني قومونه هم شته چې له هغو څخه ایبریان د اروپا په غرنیو سیمو، سلتیان په ایرلینډ، سکاټلنډ او په بریتانیا کې او د یهودیانو ډلې په روسیې او پولنډ کې دي.

## ژبې

د اروپا د خلکو د ژبو اصلي ښاخ کومه ژبه تشکیلوي؟

په اروپا کې په بېلابېلو ژبو خبرې کېږي او د دې ژبو ډولونه دومره زیات دي چې د یوه ځانګړي نژاد یا ډلې د خلکو هره برخه هم په یوه ځانګړې ژبه خبرې کوي. د اروپا د خلکو ژبې د ژبنۍ ریښې له پلوه په عمومي توګه په درې برخو وېشل کېږي: ځینې ژبې یې، لکه ایټالیایي او اسپانوي لاتینه ریښه لري، ځینې لکه الماني او انګلیسي جرمني ریښه او ځینې نورې، لکه روسي او پولندي سلاوي ریښه لري.

د اروپایي ټولنې زیات وګړي چې په یوه ځانګړې ژبه خبرې کوي، روسان دي. البته ځینې مذهبي لږه کي او اقلیتونه، لکه: مسلمانان او یهودیان او ځینې نژادي لږه کې هم د هغو هېوادونو چې په کې اوسېږي په مروجو او دودیزو ژبو خبرې کوي.



## اضافي معلومات





## د ټولګي فعالیت

زده کوونکي دې په ډلو وویشل شي او هره ډله دې په لاندې مطلبونو بحث او خبرې وکړي:

۱- نژاد په اروپا کې ۲- ژبې په اروپا کې



## پوښتنې

سم ځواب غوره کړئ:

۱- اروپایان له کوم نژاد څخه دي؟

الف: توریپوستکي ب: ژیړ پوستکي ج: سپین پوستکي د: سره پوستکي

۲- د جنوبي اروپا د خلکو نژادي ځانګړتیاوې کومې دي؟

الف: سپین رنګي ب: طلایي ویښتان ج: غنم رنګه د: ګړګوتي ویښتان

لنډ ځواب ورکړئ:

۱- سلاویان زیاتره په کومو اروپایي هیوادونو کې استوګنه کوي؟

۲- د اروپایي خلکو د ژبو د مهمو ریښو نومونه واخلئ؟



## له ټولګي څخه بهر فعالیت

په لاندې جدول کې د هیوادونو نومونه له ورکړل شوي متن څخه په ګټې اخیستنې او اړوندو استوګنو قومونو ته په پاملرنې سره په خپلو کتابچو کې بشپړ کړئ.

| جنوبي قومونه | جرمني قومونه | ختیځ قومونه |
| --- | --- | --- |
| | | |
| | | |
| | | |
| | | |
| | | |
| | | |
| | | |

# د اروپا د دین او مذهب په هکله څه پوهېږئ؟




آیا پوهېږئ چې د اروپا اکثره خلک د کوم دیني پیروان دي؟

په اروپا کې د بېلا بېلو دینونو نقشه

د اروپا زیاتره خلک (د اروپايي ترکیې، د روسیې د یو شمېر وګړو او د بالکان د ټاپووزمې د هېوادونو په ځانګړې ډول له پخواني یوګوسلاوی څخه پرته) د عیسوي دین پیروان دي چې حضرت عیسيعلیه‌السلام خپل پیغمبر ګڼي، د دوی په ګومان عیسوي دین په دریو لویو نورو مذهبونو وېشل شوی دی چې هغه دادي:

## ۱- کاتولیک (Catholic)

د عیسویت د دین د پیروانو زیاته برخه کاتولیکان جوړوي. د دې مذهب لارښود او مشر یې ((لوی‌پاپ)) دی. دا مذهب په لومړۍ درجه زیاتره د اروپا په لوېدیځ او جنوب یعنې د بلجیم، فرانسې، په لاتینو قومونو کې اسپانیې، پرتګال او په ځانګړې ډول ایټالیې کې او همدارنګه په دویمه درجه کې د اتریش، لهستان (پولیند)، مجارستان، چک او سلواک د خلکو په منځ کې رواج لري. د نړۍ د کاتولیکانو د لارښود هستوګنځی د ایټالیا د هېواد په پلازمېنه د روم په ښار کې دی چې واتیکان نومېږي.

## ۲- پروتستانت (Protestant)

د پروتستانت مذهب د اهمیت له پلوه د کاتولیک له مذهب څخه وروسته دی. پروتستانت له حضرت عیسیعلیه‌السلام څخه د زده کړو د پیروۍ له پلوه د دوی په نظر له کاتولیکانو سره اختلاف لري. هغوی د مارتین لوتر په نامه د یوه الماني پخواني روحاني مشر د لارښوونو پیروي کوي. په اروپا کې د جرمني قومونو د پروتستانت د مذهب زیات شمېر پیروان جوړوي. دا مذهب په سویډن، ناروې،

ډنمارك، انګلستان، هالنډ، المان او اتریش هېوادونو او د سویس د هېواد په یوه برخه کې ډېر دود دی.

### ۳- د ارتوډوکس مذهب (Orthodox):


د بالکان په ټاپو وزمه کې یو جومات

د اروپا د لویې وچې دریم مهم مذهب دی چې زیاتره په ختیځې او جنوب ختیځې اروپا کې رواج لري. د روسیې، رومانیې، یونان او بلغاریې د هېوادونو او په عمومي توګه د سلاو د نژاد زیاتره وګړي د هغه پیروان دي.

(د یادونې وړ ده چې خدای ﷻ ته یوازینی بشپړ دین د اسلام دین دی او بس). پرعیسوي دین سربېره مسلمانان هم په ټوله اروپا کې تیت او خپاره شوي دي چې ډېر شمېر یې د بالکان په ټاپو وزمې البانیې، بوسنې او هرزګونې، بلغاریې او اروپایي ترکیې کې استوګنه لري. په دې هېوادونو کې لرغوني او له برم څخه ډك جوماتونه شته دي. همدارنګه د اروپا په بېلابېلو هېوادونو، په ځانګړې ډول روسیې او پولینډ کې یو شمېر یهودیان هم ژوند کوي.


په واتیکان کې د سن پتر شاهي ماڼۍ یا کلیسا

### د ټولګي فعالیت

زده کوونکي دې د ښوونکي په لارښوونه په ډلو ووېشل شي او هره ډله دې د اروپا د دینونو په نقشه کې د بېلابېلو دینونو او مذهبونو ساحې معلومې او په نښه کړي.

### پوښتنې




۱- د عیسوي دین څانګې ولیکئ.

۲- د کاتولیك مذهب زیاتره د اروپا په کومو برخو کې رواج لري؟

۳- پروتستانت د کوم سړي پیروان دي او هغه د کوم ځای و؟

٤- د اروپا د کومې برخې خلك د ارتودوکس پر مذهب عقیده لري؟

۵- مسلمانان زیاتره د اروپا په کومو برخو کې اوسېږي؟

### کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د اروپا له لیکنې پرته نقشه کاپي او یا انځور کړي، د مذهبونو مروجه ځایونه دې په نښه کړي او د جغرافیې په راتلونکي لوست کې دې ټولګیوالو ته وړاندې کړي.

# د اروپا د اقتصادي جغرافيې په هکله څه پوهېږئ؟



په اروپاکې پرمختللې کرنه

ولې د اروپا اقتصاد پرمختللی دی؟

اروپا له صنعتي لويو سيمو څخه يوه ده او ډېر پرمختللی اقتصاد لري. دا لويه وچه ترځمکې لاندې زېرمې، لکه د ډبرو سکارو او نفت (د شمال په سمندرگي) کې لري. خو دا زېرمې نه شي کولی د دې لويې وچې د لويو صنايعو اړتياوې پوره کړي، نو ځکه د خپلو صنايعو د کار د دوام لپاره د نړۍ د نورو هېوادونو کاني لومړنيو موادو ته اړتيا لري او د دې توکو واردوونکې ده. نن ورځ اروپا له نوي علم او تخنيک څخه په گټې اخستنې سره توانېدلې ده چې لويه صنعتي سيمه و اوسي. د المان، انگلستان او فرانسې صنعتي توکي ټولې نړۍ ته صادرېږي.

## کرنه او مالداري

د اروپا لويې وچې د معتدل اقليم او پوره اورښت د لرلو له امله د کرنې او مالدارۍ د ودې لپاره ښې لارې چارې برابرې کړې دي. کرنه څه ناڅه په ټوله اروپاکې رواج لري او د عصري ماشين الاتو او علمي لاروچارو په کارولو سره ترسره کېږي. سره له دې هم د دې لويې وچې هېوادونه خپل د اړتيا وړ خوراکي توکو $\frac{1}{5}$ برخه برابروي، خو د هالنډ هېواد د خپلو کورنيو اړتياوو له پوره کولو سره

سره یوه اندازه خواړه بهر ته هم استوي. په دې هېواد کې کرنه او مالداري په علمي لارې ترسره کېږي، د لبنیاتو او د غوښو د محصولاتو تولید په کې هم زیات دی او د دې محصولاتو زیاته برخه بهرته لېږي.

په اروپا کې د کرنې او مالدارۍ فعالیتونه


(الف)


(ب)


(ج)

په اروپا کې غوره کرنیزې سیمې دادي:

۱- د مدیترانې د سمندرګې شاوخوا سیمې
۲- د لوېدیځې اروپا سیمې
۳- د ختیځې اروپا سیمې

د اروپا په جنوب کې مدیترانه یي اقلیم د دې سبب شوی چې په دې سیمه کې غلو او دانو، لکه غنمو، جوارو، اوربشو، وریجو او صنعتي نباتاتو، همدارنګه مېوو، لکه بادامو، لېمو، زیتونو او انارو کرلو ته زمینه برابره شي او په ځنو ځایونو کې یې د حیواناتو، لکه وزو او پسونو روزنه ترسره کېږي.
لوېدیځه اروپا طبیعي حاصل خیزه ځمکې لري چې د کرنې ترڅنګ په کې د حیواناتو روزنې هم ښه پرمختیا کړېده. غوره کرنیزه محصولات یې غنم، اوربشې، جوار، چغندر او کچالو دي. د بلجیم، هالند، جرمني او ډنمارک هېوادونو حیواني فارمونه زیاته اندازه لبنیات، لکه شیدې، کوچ او پنېر تولیدوي او له غوره صادراتي توکو څخه یې شمېرل کېږي. ختیځه اروپا هم طبیعي حاصل خیزې ځمکې لري او ډېر غوره محصولات یې غنم، اوربشې، جوار او کتان دي. د دې ځمکو زیاته برخه په روسیه کې پرته ده او د غرونو لمنو یې د حیواناتو د روزنې لپاره ښه شرایط برابرې کړې دي.

اوبه هم د اروپایانو لپاره د خوراکي توکو د تولید یوه سرچینه شمېرل کېږي او د کبانو د ښکار صنعت په کې ښه پرمختګ کړی دی. د کبانو نیول د اروپایانو مهمه بوختیا ده. ناروې او ایسلینډ هغه هېوادونه دي چې د هغو اقتصاد د کبانو پر صنعت ولاړ دی او په دې برخه کې په نړۍ کې لومړی مقام لري.

شمالي منجمد سمندر

د روسیې اروپایي برخه او
نوې خپلواکه هېوادونه

د اطلس سمندر

د مدیترانې سمندرګی

د اروپا اقتصادي مصوره نقشه

لاربود

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| زیتون | د نفتو څاه | غنم | کانونه | جغندر | تنباکو |
| کارخانه | سمندرکې د نفتو رایستنه | جوار | د ډبرو سکروکان | د شیدو غواګانې | کب نیول |
| خوګ | لرګي | انګور | غوښن غويي | پسونه | مېوې |



په اروپا کې د کب نیونې شغل

### د ټولګي فعالیت

زده کوونکي دې په دریو ډلو ووېشل شي هره ډله دې د لاندېنیو موضوعاتو په هکله بحث وکړي او پایلې دې خپلو ټولګیوالو ته وړاندې کړي:

۱ـ د مدیترانې د شاوخوا کرنیزې برخې
۲ـ د لوېدیځې اروپا کرنیزې برخې
۳ـ د اروپا ختیځې کرنیزې برخې

### پوښتنې

۱ـ د دریو اروپایي هېوادونو نومونه واخلئ چې د صنعتي توکو صادروونکي دي؟
۲ـ د اروپا کرنه ولې پرمختللې ده؟
۳ـ د اروپا د کرنیزو برخو نومونه واخلئ.
٤ـ کوم اروپایي هېوادونه په نړۍ کې د کب نیولو په صنعت کې لومړی مقام لري؟
٥ـ اروپایان د خپلو صنعتونو د دوام لپاره کومو منابعو ته اړتیا لري؟

### کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د یوه اروپایي صنعتي هېواد په هکله چې پرمختللی اقتصاد لري، یو مطلب برابر او د جغرافیې په راتلونکي درسي ساعت کې دې ټولګیوالو ته وړاندې کړي.

# د اروپا د کانونو او صنايعو په هکله څه پوهېږئ؟



په شمال سمندرگي کې د نفتو رااېستنې عمليه

ولې اروپا د صنعتي اومو توکو واردوونکې ده؟

## الف- کانونه

د اروپا ترځمکې لاندې زېرمې دومره شتمنې نه دي او دا حالت د اروپايي هېوادونو له خوا د درېمې نړۍ د هېوادونو د استعمار او ښکېلاک يو عامل و. اروپايي هېوادونو پخوا د خپلو اړتياوو د پوره کولو لپاره د نورو لويو وچو مستعمره کولو ته مخه کوله او همدارنگه د اروپا د لويې وچې پرمختيا د نورو هېوادونو له هغې ډلې د آسيايي او افريقايي هېوادونو د زېرمو له لوټولو څخه پرته ناشونې وه.

نفت د اروپا په ځينو برخو کې شته دي، خو د شمال سمندرگي د نفتي زېرمو له کشف څخه دمخه يې اندازه ډېره لږه وه، چې د صنايعو په پراختيا او په ځانگړې ډول له نقليه وسيلو څخه په ډېرې گټې اخيستنې سره نشي کولای د دې هېوادونو اړتياوې پوره کړي. د لوېديځې اروپا د هېوادونو ډېره پاملرنه د شمال سمندرگي د نفت او گاز زېرمو ته ده چې اوس د انگلستان او د سيمې د ځينو نورو هېوادونو اړتياوې تر يوه حده پوره کوي. اروپا د اوسپنې او ډبرو سکرو د کانونو له پلوه شتمنه ده او د انگلستان، روسيې، فرانسې، بلجيم، المان او پولينډ هېوادونه د نوموړو کانونو غوره توليدوونکي دي. اوسپنه د سويډن له شمالي برخو څخه د بېړيو په وسيله د اروپا صنعتي سيمو ته وړل کېږي.

## ب- صنایع

د اروپا د صنایعو په هکله څه پوهېږئ؟


د ایټالیا د پولادو صنایع

### ۱- لاسي صنایع

له صنعتي انقلاب څخه د مخه د اروپا صنایع لاسي اوکارګا هو پوسیله جوړیده چې کولای شو په ایټالیې کې د ښیښې جوړولو، په اسپانیې کې د چاقوګانو او تورو جوړولو، په سویس کې د ساعت جوړولو، په هالنډ کې د چیني لوښو جوړولو او په ایرلینډ کې د کتاني ټوکرانو د اوبدلو یادونه وکړو.

### ۲- ماشیني صنایع

اروپا د ډېرو سکرو د زېرمو او د ښه حمل او نقل په درلودلو سره په نړۍ کې لویه صنعتي سیمه ده. د اروپا درانه صنایع او لویې صنعتي کارخانې د کانونو ترڅنګ جوړې شوې دي. همدارنګه د اروپا صنعتي لوی ښارونه او بندرونه هم د سمندرونو او سیندونو په غاړو را منځ ته شوي دي، ځکه د بندرونو له لارې د اومو موادو او تولیدي توکو وړل او راوړل ډېر ارزانه سرته رسېږي. د اروپا له مهمو بندرونو څخه یو هم د امستردام د بېړیو چلولو د کانال په غاړه د شمال سمندرګي په ساحل کې د روټردام په نوم بندر دی. او د اروپا بل صنعتي لوی بندر په ایټالیا کې د جینوا بندر دی.

د سویډن د کاغذ جوړونې صنعت


د اروپا مهم صنایع د فلزاتو ویلې کول، الکترونیکي سامان آلات او د ماشیني وسایلو تولید، بېړۍ جوړول، موټر جوړول او داسې نور دي.

## ج- توریزم

د اروپا په اقتصاد کې د توریزم صنعت هم د ارزښت وړ دی. په اروپا کې توریزم د ډېرو تاریخي او کلتوري

مرکزونو، لکه موزیمونو، کلیساګانو، پوهنتونونو او د اروپايي هېوادونو د طبیعي ښو سیمو د شته والي له امله، له یوه هېواد څخه بل هېواد ته د سفرونو آسانتیاوو په اروپا کې سیاحت او ګرځندوی ته وده ورکړېده.

د اروپا جنوبي غاړې د مدیترانې د سمندرګي ترڅنګ چې د لمریزې اروپا په نوم شهرت لري، د اروپا د نورو سیمو وګړي ځان ته را جلبوي. د الپ غرونه د غرو ختونکو او د ژمنیو لوبو لپاره له لیرې او نژدې هېوادونو څخه زیات مینه وال لري. د اوبو سپورتونه، په ځینو اروپايي هېوادونو کې د جشنونو مراسم، قصرونه، تاریخي او د معمارۍ هنري آثار د اروپا د توریزم نورې ساحې شمېرل کېږي.

د یادونې وړ ده چې د اروپا زیاتره وګړي، په ځانګړي ډول پرمختللي هېوادونه د سوداګرۍ، بانکدارۍ او داسې نورو کارونو په خدمتونو بوخت دي او د هغو فیصدي د کرنې او صنایعو په برخه کې لږه ده چې دا په خپله په اروپا کې د اقتصاد د زیات پرمختګ څرګندوی ده.

د فرانسې د ایفل برج تصویر



د اروپا توریستي ځایونه

الف: د ټایمز د سیند په غاړه د بیگ بن د ساعت برج



ب: د الپ په غرو کې سپورتي لوبې



## د ټولگي فعالیت

زده کوونکي دې په دریو ډلو وویشل شي او هره ډله دې په لاندېنیو مطلبونو خبرې اترې وکړي او د بحث پایله دې ټولگیوالو ته ووایي.

الف: د اروپا کانونه

ب : د اروپا صنایع

ج : توریزم په اروپا کې

## پوښتنې

۱ـ د اروپا د سپکو یا لاسي صنایعو تولیدات کوم دي؟ نومونه یې وواياست.

۲ ـ د اروپا صنعتي مرکزونه زیاتره چېرې جوړ شوي دي؟ او ولې؟

۳ـ د اروپا درانې صنایع کومې دي؟ لېست یې کړئ.

## کورنۍ دنده

د اروپا له بې لیکنې نقشه رسم یا کاپي کړئ او د اروپا د مهمو صنعتي هېوادونو نومونه په ټاکلو ځایونو کې ولیکئ او د جغرافیې په راتلونکي لوست کې یې ټولگیوالو ته وړاندې کړئ.

# د اروپا د لويې وچې د ترانسپورت په هکله څه پوهيږئ؟



د اروپا د چټکو کرښو شبکه

پخوا خلکو د مسافرينو او مالونو د وړلو او راوړلو لپاره له کوم ډول د ترانسپورت څخه ګټه اخيسته؟

## ترانسپورت (Transport)

له يو ځای څخه بل ځای ته د سوداګرۍ د مالونو او انسانانو له وړلو او راوړلو څخه عبارت دی، چې دا عمل د رېل، موټر، بېړۍ، الوتکې او پايپ لين په وسيله ترسره کېږي.
وړل او راوړل (حمل و نقل) په بېلابېلو لارو چارو سرته رسېږي چې په لنډ ډول يې مطالعه کوو.

### الف- سرک يا لويه لار



په اروپا کې د ښو سرکونو او لويو لارو جوړول په لومړي پړاو کې د نظامي او سوداګريزو اړتياوو د پوره کولو لپاره منځته راغلل. د روم امپراتورۍ د خپلو لښکرو د چټک حرکت او لېږدونې لپاره د سړکونو لومړني جوړوونکي وو. ناپليون او هيټلر هم د همدغې موخې لپاره سړکونه جوړ کړل. په وروستيو

کلونو کې د زیاتو موټرو تولید هم د سړکونو د جوړونې سبب شو. اوس کولای شو د هالنډ په شمال کې له امستردام څخه ایټالیې تر جنوب پورې د لویو نښلوونکو سړکونو له لارې لاړ شو. له غرنیو سیمو څخه د تېرېدو لپاره تونلونه جوړ شوي دي، چې ډېر مهم تونل یې د مونټ بلان (Month Blaine Tunele) په نوم دی. دا تونل ۱۲ کیلومتره اوږدوالی لري او فرانسه او ایټالیه سره نښلوي. د دویمې نړیوالې جګړې څخه وروسته د ګرندیو موټرو شمېر مخ په زیاتېدو دی د بېلګې په توګه، په سویډن کې د هرو څلورو تنو لپاره یو موټر شته دی، خو د ختیځې اروپا په هېوادونو کې د ګرندیو موټرو شمېر ډېر لږ دی. په ډنمارک او هالنډ کې د بایسکلونو لپاره هم ځانګړې لارې جوړې شوې دي.

## ب- د اوسپنې لارې

د اوسپنو د لارو (د رېل کرښې) جوړونه له اروپا څخه پیل شوې ده او په ۱۸۰۴ م کال کې لومړنی د بړاس لکوموتیف د انګلستان په ویلز کې د توکو او مسافرینو د وړلو لپاره په کار واچول شو.

لومړنۍ د اوسپنو لاره په ۱۸۲۵ م کال کې د ستوکتن (Stockton) او د ارلینګتون (Darlington) د ښارونو ترمنځ د عمومي وړلو او راوړلو لپاره جوړه شوه او بیا ورو ورو د اوسپنې کرښې په اروپا کې پراختیا وموندله. اوس دا لویه وچه د نړۍ له ګڼې ګوڼې څخه ډکې لارې لري. د اروپا د چټکو رېلونو کرښې له ډېرو چټکو او هوسا رېلونو څخه ګټه اخلي. دا کرښې د اروپا لوی ښارونه سره نښلوي. نن ورځ د اوسپنې لارې د اروپا په دننه کې د مسافرینو او مالونو په وړلو او راوړلو کې مهم رول لوبوي.

### د ټولګي فعالیت

زده کوونکي دې په ډلو کې تنظیم شي او هره ډله دې د لویې لارې یا سړک او د رېل کرښو په هکله له یو بل سره سلامشوره وکړي او پایلې دې د ډلې د استازي په وسیله خپلو ټولګیوالو ته وړاندې کړي.

### پوښتنې

۱ـ ترانسپورت تعریف کړئ.
۲ـ ولې رومیانو د سړکونو پراختیا ته ځانګړې پاملرنه درلوده؟
۳ـ لومړی ځل رېل چېرې او د کومې موخې لپاره په کار واچول شو؟
٤ـ د اوسپنو لومړنۍ کرښې د اروپا کوم ښارونه سره نښلولي وو؟
۵ـ د اوسپنو له کرښو څخه زیاتره د کومو موخو لپاره ګټه اخیستل کېږي؟

### کورنۍ دنده

د اروپا د لویې وچې په اقتصادي پرمختګ کې د اوسپنو د کرښو د رول په هکله یو مطلب ولیکئ او خپلو ټولګیوالو ته یې وړاندې کړئ.

پنځلسم لوست

# هوايي کرښې



د اروپا هوايي ډګر

آيا پوهېږئ چې د انرژۍ له پلوه په نړۍ کې د ډېر لګښت لرونکی ترانسپورټ کوم دی؟

په ۱۸ مه م پېړۍ کې په فرانسه کې هوا ته د لومړني بالون په الوتلو سره د هوايي چلند تاريخ پيل شو. په ۱۹۱۹ م کال کې د سوداګرۍ لومړنۍ هوايي کرښه په هالند کې منځ ته راغله. هوايي کرښې د اروپا لوی ښارونه او بهرني هېوادونه سره نښلوي او د مسافرينو او د هغوی د سوداګرۍ شيانو د وړلو لپاره چې درانه نه وي او ارزښت يې زيات وي، ګټه اخيستل کېږي.

## د اوبو لارې:

آيا پوهېږئ چې په نړۍ کې ډېره ارزانه ترانسپورټي لاره کومه لاره ده؟

له لرغونو زمانو څخه د اوبو لارې د شيانو او مسافرينو په وړلو او راوړلو کې ارزښت لري. د اروپا دانيوب او راين سيندونو د تاريخ په اوږدو کې په وړلو او راوړلو کې، رول لوبولی دی. د راين له سيند څخه روميانو ګټه اخيستله او د سيندونو خوله (مصب) به يې کنټرولوله. د راين او دانيوب له سيندونو څخه په نړيواله توګه ګټه اخيستل کېږي. د دانيوب سيند ډېر اوږد او زيات هېوادونه سره نښلوي. د اروپا له کرنيزو هېوادونو څخه تېرېږي او په توره بحيره کې توييږي. د راين سيند د اروپا په صنعتي سيمو کې زيات ارزښت لري. د هالند د روتردام لوی بندر د نړۍ له بل هر سيندي او سمندري بندر څخه زيات

مالونه لېږدوي.

د اروپا زیاتره سیندونه، لکه د آلمان الب او اودر، د فرانسې د سن او لوار د سیندونو په څېر د کانالونو په وسیله سره نښلول شوي دي. دا سیندونه په اروپا کې د اوسپنې د لارې له پراختیا د مخه نښلول شوي دي. په انګلستان کې هم کانالونه شته چې اوس خپل پخوانی ارزښت نه لري. اوس کولی شو د همدې کانالونو او سیندونو په وسیله له شمال سمندرګي څخه د مدیترانې د سمندرګي په غاړه د مارسي بندر ته سفر وکړو. د اروپا سواحل چې ځینې د بېړیو چلولو لپاره برابر دي، د لویو سوداګریزو بندرونو د منځته راتګ سبب شوي او ډېره ارزانه ترانسپورتي لاره ګڼل کېږي. د اروپا څه ناڅه ټول ښارونه له مادرید څخه پرته نور ټول د سیندونو، سمندرګیو او د اتلانتیک د سمندر په غاړو جوړ شوي دي. همدارنګه د پایپ لین له حمل و نقل څخه د نفتو، ګازو او اوبو د وړلو لپاره ګټه اخیستل کېږي.


د آلمان د برمن په بندر کې د مالونو وړلو او راوړلو فعالیت

### د ټولګي فعالیت

زده کوونکي دې په ډلو ووېشل شي او هره ډله دې د لاندېنیو پوښتنو په هکله بحث وکړي او دهغو پایلې دې د ډلې استازي ټولګیوالو ته وړاندې کړي.

۱ـ له هوایي ترانسپورت څخه زیاتره د کومو موخو لپاره ګټه اخیستل کېږي او ولې؟
۲ـ د اوبو ترانسپورت په کوم دلیل د نړۍ ډېره ارزانه ترانسپورتي لار ده؟
۳ـ له پایپ لین څخه زیاتره د کومو موخو لپاره ګټه اخیستل کېږي؟

### پوښتنې

۱ـ د نړۍ د سوداګرۍ لومړنۍ هوایي کرښې په کوم هېواد کې فعالیت پیل کړ؟
۲ـ له هوایي کرښو څخه زیاتره د کومو شیانو د وړلو لپاره ګټه اخیستل کېږي؟
۳ـ ډېر لرغونی ترانسپورت کوم یو دی؟
٤ـ د اروپا د بېړۍ چلولو ډېر اوږد سیند کوم یو دی؟
۵ـ د اروپا د سوداګرۍ ډېر لوی سیند او سمندري بندر کوم دی؟

### کورنۍ دنده

د اروپا د اوبو د لارو د پراخوالي د لاملونو تر سرلیک لاندې یو مطلب ولیکئ او ټولګیوالو ته یې وړاندې کړئ.

## د لوېږي څېرکي (اروپا) لنډيز

ـ اروپا د نړۍ يوه کوچنۍ لويه وچه ده چې د نړۍ په شمالي معتدله سيمه کې پرته ده.
ـ د اروپا غرونه په دوو برخو وېشل شوي چې زاړه او رژېدلي غرونه يې په شمال کې او ځوان او لوړ غرونه يې په جنوب کې پراته دي.
ـ د اروپا لويه وچه ډېر شمېر سيندونه لري او زياتره يې د بېړيو چلولو وړ دي.
ـ د اروپا د لويې وچې د ټولو جهيلونو اوبه تقريباً خوږې دي او د سيندونو سرچينې جوړوي.
ـ د اروپا د لويې وچې لوی او مهم سمندرگی مديترانه دی چې د دريو لويو وچو آسيا، اروپا او افريقا ترمنځ پروت دی.
ـ د اروپايي هېوادونو د صنعتي پرمختگ يو علت هم د بېړيو چلولو د زياتو خليجونو شته والی او سمندري موقعيت دی.
ـ اروپا يوازينۍ لويه وچه ده چې په هغې کې وچ او تاوده بيابانونه او دښتې نشته.
ـ اروپا له سياسي پلوه له ٤٧ هېوادونو څخه جوړه شوې او د ځينو هېوادونو ترمنځ سياسي، فرهنگي، اقتصادي او نورې گډې اړيکې د يوه قرار داد پر بنسټ چې د اروپا اتحاديه يې بولي، ترسره کېږي.
ـ د اروپا لويه وچه له لږ پراخوالي سره سره د نړۍ گڼ مېشته لويه وچه يا براعظم دی.
ـ د اروپا د وگړو زياتره برخه سپين پوستي تشکيلوي.
ـ د اروپا د خلکو ژبه د ژبنۍ ريښې پربنسټ په دريو ډلو: لاتين، جرمني او سلاو وېشل شوې ده.
ـ د اروپا زياتره وگړي د عيسوي دين پيروان دي چې په دريو مذهبونو: کاتوليك، پروتستانت او ارتودوکس وېشل شوي دي.
ـ اروپا د نړۍ له لويو صنعتي سيمو څخه يوه ده.
ـ تر ځمکې لاندې زيرمې لکه: د ډبرو سکاره او نفت د اروپا د لويې وچې په شمالي سمندرگي کې شته.
ـ د اروپا زياتره صنايع، صنعتي لوی ښارونه او بندرونه د سيندونو او سمندرونو پر غاړو منځته راغلي دي.
ـ په اروپا کې د توريزم صنعت، د طبيعي، تاريخي، فرهنگي او نورو ساحو د شته والي له امله ښه پرمختللی دی.
ـ د اروپا لويه وچه د نړۍ له گڼې گوڼې څخه ډکې د اوسپنو کرښې لري.
ـ هوايي کرښې د زياتې انرژۍ لگښت کوونکی ترانسپورت دی.
ـ د اوبو لارې په اروپا کې ډېرې ارزانه ترانسپورتي لارې گڼل کېږي.

## څلورمه ګڼه جدول: د اروپايي هېوادونو جغرافيايي ځانګړتياوې (د مطالعې لپاره)

| ګڼه | هېوادونه | عمومیات | | | | په ۲۰۰۱ م . کال کې په مختلفو برخوکې د نفوسو د بوختیا فیصدي | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| | | پلازمېنه | پرخوالي په کیلو متر مربع سره | په ۲۰۰٦ م کال کې د نفوسو شمېر | په یوکیلو متر مربع کې د نفوسو شمېر | کرنه | صنعت | خدمتونه |
| ۱ | البانیا | تیرانا | ۲۸,۷۴۸ | ۳,۵۸۱,۶۵۵ | ۱۲۵ | ۵۴,۷ | ۲۳,۱ | ۲۲,۲ |
| ۲ | بلجيم | بروکسل | ۳۳,۰۰۰ | ۱۰,۳۷۹,۰۶۷ | ۳۱۵ | ۲,۶ | ۲۷,۲ | ۷۰,۳ |
| ۳ | بوسني-هرزګوین | ساراېوو | ۵۱,۱۲۹ | ۴,۴۹۸,۹۷۶ | ۸۸ | ۱۱,۷ | ۴۷,۵ | ۴۰,۸ |
| ۴ | بلغاریا | صوفیا | ۱۱۰,۹۱۲ | ۷,۳۸۵,۳۶۷ | ۶۷ | ۲۵,۷ | ۳۰,۸ | ۴۳,۵ |
| ۵ | ډنمارک | کوپن هاګن | ۴۳,۰۹۴ | ۵,۴۵۰,۶۶۱ | ۱۲۶ | ۳,۶ | ۲۶,۸ | ۶۹,۶ |
| ۶ | آلمان | برلین | ۳۵۷,۰۲۲ | ۸۲,۴۲۲,۲۹۹ | ۲۳۱ | ۲,۶ | ۳۴,۶ | ۶۲,۹ |
| ۷ | استوني | تالین | ۴۵,۱۰۰ | ۱,۳۲۴,۳۳۳ | ۲۹ | ۹,۰ | ۳۱,۷ | ۵۹,۳ |
| ۸ | فنلنډ | هلسنګي | ۳۳۸,۱۴۵ | ۵,۲۳۱,۳۷۲ | ۱۵ | ۶,۱ | ۲۷,۵ | ۶۶,۴ |
| ۹ | فرانسه | پاریس | ۵۵۰,۱۰۰ | ۶۰,۸۷۶,۱۳۶ | ۱۱۱ | ۱,۵ | ۲۵,۱ | ۷۳,۴ |
| ۱۰ | یونان | اتن | ۱۳۱,۹۹۰ | ۱۰,۶۸۸,۰۵۸ | ۸۱ | ۱۷,۵ | ۲۲,۵ | ۵۹,۹ |
| ۱۱ | هنګري | بوداپست | ۹۳,۰۳۲ | ۹,۹۸۱,۳۳۴ | ۱۰۷ | ۶,۸ | ۳۴,۴ | ۵۸,۸ |
| ۱۲ | ایرلنډ | دوبلین | ۷۰,۲۸۴ | ۴,۰۶۲,۲۳۵ | ۵۸ | ۸,۵ | ۳۰,۰ | ۶۱,۵ |
| ۱۳ | ایسلنډ | ریکجاویک | ۱۰۳,۰۰۰ | ۲۹۹,۳۸۸ | ۳ | ۸,۶ | ۲۵,۲ | ۶۶,۲ |
| ۱۴ | ایټالیا | روم | ۳۰۱,۲۶۸ | ۵۸,۱۳۳,۵۰۹ | ۱۹۳ | ۵,۶ | ۳۲,۱ | ۶۲,۳ |
| ۱۵ | کرواتي | زاګرب | ۵۶,۵۳۸ | ۴,۴۹۴,۷۴۹ | ۷۹ | ۱۶,۴ | ۳۰,۹ | ۵۲,۶ |
| ۱۶ | لاتویا | ریګا | ۶۴,۶۰۰ | ۲,۲۷۴,۷۳۵ | ۳۵ | ۱۵,۵ | ۲۶,۴ | ۵۸,۱ |
| ۱۷ | لیتواني | ویلنیوس | ۶۵,۲۰۰ | ۳,۵۸۵,۹۰۶ | ۵۵ | ۲۰,۲ | ۳۶,۴ | ۴۳,۵ |
| ۱۸ | لوکزامبورګ | لوکزامبورګ | ۲,۵۸۶ | ۴۷۴,۴۱۳ | ۱۸۳ | ۳,۰ | ۲۸,۰ | ۶۹ |
| ۱۹ | مقدونیه | سکوپیه | ۲۵,۷۱۳ | ۲,۰۵۰,۵۵۴ | ۸۰ | ۲۱,۸ | ۴۰,۴ | ۳۷,۸ |
| ۲۰ | مالتا | والتا | ۳۱۶ | ۴۰۰,۲۱۴ | ۱,۲۶۷ | ۲,۰ | ۲۶,۰ | ۷۲,۰ |
| ۲۱ | مولداوي | کیشي نف | ۳۳,۷۰۰ | ۴,۴۶۶,۷۰۶ | ۱۳۳ | ۴۵,۷ | ۱۴,۶ | ۳۹,۷ |
| ۲۲ | مونتینګرو | پډګوریکا | ۱۳,۸۱۲ | ۶۳۰,۵۴۸ | ۴۶ | ۲,۰ | ۳۰,۰ | ۶۸,۰ |
| ۲۳ | هالنډ | امستردام | ۴۱,۵۲۶ | ۱۶,۴۹۱,۴۶۱ | ۳۹۷ | ۳,۲ | ۲۲,۰ | ۷۴,۸ |
| ۲۴ | ناروې | اوسلو | ۳۲۳,۸۷۷ | ۴,۶۱۰,۸۲۰ | ۱۴ | ۴,۱ | ۲۱,۸ | ۷۴,۰ |
| ۲۵ | اوکراین | کیف | ۶۰۳,۷۰۰ | ۴۶,۷۱۰,۸۱۶ | ۷۷ | ۲۶,۱ | ۲۷,۴ | ۴۶,۵ |

| گڼه | هېوادونه | عمومیات | | | | په ۲۰۰۱ م . کال کې په مختلفو برخو کې د نفوسو د بوختیا فیصدي | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| | | پلازمېنه | پرخوالی په کیلو متر مربع سره | په ۲۰۰٦ م کال کې د نفوسو شمېر | په یو کیلو متر مربع کې د نفوسو شمېر | کرنه | صنعت | خدمتونه |
| ۲۶ | اتریش | ویانا | ۸۳,۸۵۹ | ۸,۱۹۲,۸۱۸ | ۹۸ | ۶,۴ | ۳۱,۳ | ۶۲,۳ |
| ۲۷ | پولنډ | وارسا | ۳۲۳,۲۵۰ | ۳۸,۵۳۶,۸۶۹ | ۱۱۹ | ۱۹,۰ | ۳۱,۷ | ۴۹,۳ |
| ۲۸ | پرتگال | لزبون | ۹۱,۹۸۲ | ۱۰,۶۰۵,۸۱۷ | ۱۱۵ | ۱۲,۳ | ۳۵,۲ | ۵۲,۵ |
| ۲۹ | رومانیه | بوخارست | ۲۳۸,۳۹۱ | ۲۲,۳۰۳,۵۵۲ | ۹۴ | ۴۱,۷ | ۲۸,۱ | ۳۰,۲ |
| ۳۰ | روسیه | مسکو | ۱۷,۰۷۵,۴۰۰ | ۱۴۲,۸۹۳,۵۴۰ | ۸ | ۱۱,۶ | ۲۹,۶ | ۵۸,۸ |
| ۳۱ | صربیا | بلگراد | ۸۸,۳۶۱ | ۹,۳۹۴,۴۱۱ | ۱۰۶ | ۲۹,۷ | ۳۲,۹ | ۳۷,۴ |
| ۳۲ | سلووینیا | لیوبلیانا | ۲۰,۲۵۶ | ۲,۰۱۰,۳۴۷ | ۹۹ | ۱۱,۰ | ۳۷,۶ | ۵۱,۴ |
| ۳۳ | سلواك | براتیسلاوا | ۴۹,۰۱۲ | ۵,۴۳۹,۴۴۸ | ۱۱۱ | ۷,۶ | ۳۸,۰ | ۵۴,۴ |
| ۳۴ | اسپانیا | مادرید | ۵۰۵,۹۹۲ | ۴۰,۳۹۷,۸۴۲ | ۸۰ | ۶,۹ | ۳۰,۹ | ۶۲,۲ |
| ۳۵ | چك | پراگ | ۷۸,۸۶۴ | ۱۰,۲۳۵,۴۵۵ | ۱۳۰ | ۵,۱ | ۳۹,۱ | ۵۵,۹ |
| ۳۶ | بریتانیا | لندن | ۲۴۴,۱۰۱ | ۶۰,۶۰۹,۱۵۳ | ۲۴۸ | ۱,۶ | ۲۵,۴ | ۷۳,۱ |
| ۳۷ | سپینه روسیه | مینسك | ۲۰۷,۶۰۰ | ۱۰,۲۹۳,۰۱۱ | ۵۰ | ۱۹,۷ | ۴۰,۶ | ۳۹,۷ |
| ۳۸ | سویډن | ستکهلم | ۴۴۹,۹۶۴ | ۹,۰۱۶,۵۹۶ | ۲۰ | ۲,۶ | ۲۵,۵ | ۷۱,۹ |
| ۳۹ | سویس | برن | ۴۱,۲۸۴ | ۷,۵۲۳,۹۳۴ | ۱۸۲ | ۴,۶ | ۲۶,۷ | ۶۸,۷ |
| ۴۰ | سان مرینو | سان مرینو | ۶۱ | ۳۰۲۰۰ | ۴۶۷,۲ | | | |
| ۴۱ | اندورا | اندورا لاولا | ۴۵۳ | ۶۹۸۶۵ | ۱۵۴ | | | |
| ۴۲ | موناکو | موناکو | ۱,۹۵ | ۳۲۸۰۰ | ۱۶۱,۳ | | | |
| ۴۳ | لختن شتن | وادوز | ۱۶۰ | ۳۵۱۰۰ | ۲۱۲,۹ | | | |
| ۴۴ | واتیکان | واتیکان سیتي | ۰,۴۴ | ۹۲۰ | ۲۰۴ | | | |
| ۴۵ | آذربایجان | باکو | ۸۶۶۰۰ | ۸۴۷۴۰۰ | ۹۴,۵ | | | |
| ۴۶ | ارمنستان | ایروان | ۲۹۸۰۰ | ۲۹۷۶۰۰۰ | ۱۱۱,۹ | | | |
| ۴۷ | گرجستان | تفلیس | ۶۹۷۰۰ | ۴۴۷۴۰۰۰ | ۷۱,۶ | | | |

# دویم څپرکی

# د امریکا براعظم

## د دې څپرکي موخې:

**ګرانو زده کوونکو! د دې څپرکي له لاندېنیو علمي موخو سره به آشنا شئ:**

ـ د امریکا لویه وچه له جغرافیایي موقعیت سره.

ـ د امریکا لویه وچه له مهمو لوړو او ژورو (غرونو، سیندونو، سمندرګیو، جهیلونو او خلیجونو) سره.

ـ د امریکا د لویې وچې له اقلیم سره.

ـ د امریکا د لویې وچې له سیاسي جغرافیې سره.

ـ د امریکا د لویې وچې له اقتصادي جغرافیې سره (کرنه، صنعت، سوداګرۍ او حمل و نقل).

**ـ زده کوونکي دې د دې څپرکي په لوستلو سره لاندې مهارتونه حاصل کړي:**

ـ د نقشې پر مخ د امریکا د لویې وچې موقعیت معلومول.

ـ د نقشې پر مخ د مهمو غرونو، سیندونو، سمندرګیو او جهیلونو معلومول.

ـ د نقشې پر مخ د امریکا د لویې وچې د هېوادونو د موقعیت معلومول.

ـ د انسانانو په ژوند کې د حمل و نقل د ارزښت د نتیجې توضیح کول.

# د امریکا د لویې وچې د جغرافیایي موقعیت په هکله څه پوهیږئ؟




د امریکا لویه وچه د نړۍ په نقشه کې

۲- ۱ موقعیت

**الف: څلور خواوې:** د امریکا لویه وچه د ۱۵ درجو او ۱۷۰ درجو لوېدیځو طول البلدونو او د ۸٤ درجو شمالي عرض البلد او د ۵۵ درجو جنوبي عرض البلد ترمنځ موقعیت لري.

دا لویه وچه د شمال له خوا په شمالي کنګل سمندر، د جنوب له خوا د دریک Derak passage په سمندري لار (چې د انترکتیکا او د سویلي امریکا ترمنځ بېلوونکې پوله ده: په ختیځ کې د اطلس په سمندر چې د اروپا او افریقا لویې وچې یې د امریکا له لویې وچې څخه بېلې کړې او په لوېدیځ کې د آرام سمندر (بحرالکاهل) او د بیرنګ دآبنا سره چې د ۸۵ کیلومترو په واټن الاسکا له روسیې څخه بېلوي، نښتې ده.

پراخوالی (مساحت) یې ۴۲,۳ میلیونه کیلومتره مربعې ته رسیږي.

د امریکا د لویې وچې ډېره لېرې شمالي نقطه شمالي قطب او جنوبي ډېره لېرې نقطه یې د کېپ هارن Cape-Horn دماغه ده. اوږدوالی یې له شمال څخه سویل ته ۱۵۰۰۰ کیلومتره دی او سور یې له ختیځ څخه لوېدیځ ته په مختلفو برخو کې سره توپیر لري.

**د امریکا د لویې وچې وېش:**

د امریکا لویه وچه له شمال څخه جنوب لور ته په دریو برخو وېشل شوې ده چې له شمالي امریکا، منځنۍ امریکا او جنوبي امریکا څخه عبارت ده. د امریکا لویه وچه له شمال څخه جنوب لور ته اوږده

پرته ده. په شمالي امريکا کې دوه هېوادونه کاناډا او متحده ايالتونه موقعيت لرى چې له شمالي قطب څخه د مکسيکو تر هېواد پورې غځېدلې ده. منځنۍ امريکا د شمالي امريکا او جنوبي امريکا ترمنځ پرته ده، منځنۍ امريکا د شمال له خوا متحده ايالاتو سره او په جنوب کې له جنوبي امريکا سره ګډه پوله لري او د پانامې کانال د کارابين سمندرګى له آرام سمندر سره نښلوي او منځنۍ امريکا له جنوبي امريکا څخه بېلوي. جنوبي امريکا په جنوبي نيمه کره کې د شمالي عرض البلد له ۱۲ درجو څخه د جنوبي عرض البلد تر ۵۵ درجو پورې موقعيت لري او په شمالي نيمه کره کې يې ډېره لږه برخه پرته ده. جنوبي امريکا د منځنۍ امريکا په جنوب کې د مثلث په بڼه موقعيت لري چې راس يې د هورن دماغه (کيپ هورن) او قاعده يې د کارابين په سمندرګي او په منځنۍ امريکا کې موقعيت لري.

### د ټولګي فعاليت

زده کوونکي دې په ډلو ووېشل شي او له ورکړل شوې نقشې څخه په ګټې اخيستنې سره دې د امريکا د لويې وچې موقعيت د طول البلدونو او عرض البلدونو پر بنسټ وټاکي او تمرين دې کړي.

### پوښتنې

لاندې جملې بشپړې کړئ:

۱ـ د امريکا لويه وچه ............. کيلومتره مربع پراخوالى لري؟

۲ـ د ............ آبنا جنوبي امريکا د انتارکتيکا له لويې وچې څخه بېلوي؟

۳ـ د امريکا د لويې وچې او د آسيا د لويې وچې ترمنځ ............... بېلوونکي حد تشکيلوي.

٤ـ د امريکا او اروپا د لويې وچې ترمنځ ............... بېلوونکى سرحد تشکيلوي.



د امريکا سياسي نقشه

### کورنۍ دنده

د ورکړل شوې نقشې له مخې د شمالي، منځنۍ او جنوبي امريکا د هېوادونو نومونه بېل بېل ليست کړئ او د جغرافيې په راتلونکي ساعت کې يې، په ټولګي کې ولولئ.

## ب. د امریکا د لویې وچې د کشف په هکله څه پوهیږئ؟



د کرستف کولمب انځور

آیا د امریکا د کشف کوونکي له نوم سره آشنایي لرئ؟

کرستف کولمب ایټالوي بېړۍ چلوونکي ته د ځمکې د کرویت په هکله د مسلمانانو د لیکنو پربنسټ په ۱۴۹۲ م کال کې د اسپانیې د پاچا له خوا دنده ورکړل شوه چې د لوېدیځ پرلور هندوستان ته سفر وکړي او کومه شتمني چې هلته وه، لاس ته راوړي خو کولمب خپل سفر پیل کړ، هغه ځای ته ورسېد چې هغه یې د غرب الهند په نامه یاد کړ او لومړنۍ سیمه چې هلته په کې پلی شو هغه یې د سان سالوا دور (مقدس نجات ورکوونکي) په نامه یاده کړه (چې د بهاما د ټاپوګانو له ډلې څخه وه). کولمب فکر کاوه چې آسیا او هند ته رسېدلی دی او خپلو ملګرو ته یې لارښوونه ورکړه چې د ټاپو ګانو په پلټنه پیل وکړي. کولمب درې ځلې نور هم د امریکا نوې وچې ته سفر وکړ.
له کولمب څخه وروسته بل بېړۍ چلوونکي د امریکو سپوچي په نوم د کولمب لارې ته دوام ورکړ او د جنوبي عرض البلد تر ۵۲ درجو پورې د برازیل د هېواد غاړو ته نژدې پرمخ ولاړ. دې بېړۍ چلوونکي د خپل سفر په هکله یوه مقاله ولیکله او هغه یې خپره کړه، وروسته بیا په ۱۵۰۲ م کې یوه جغرافیه یوه یو کتاب ولیکه او په هغه کې یې د امریکو سپوچي مقالې ته د خپل اثر په سریزه کې ځای ورکړ او چاپ یې کړ. په ۱۵۰۷ م کال کې نوموړی کتاب په لاتیني ژبه وژباړل شو چې په سریزه کې یې یوه جغرافیه پوه وړاندیز وکړ چې د وچې دا ټوټه دې، د هغه د کشف کوونکي په نوم امریکا ونومول شي.

په لومړیو کې د امریکا نوم د استوا د کرښې د جنوب برخې ته استعمالېده چې کولمب هغه ځای ته سفر نه و کړی، خو وروسته یې شمالي برخه هم په بر کې ونیوله او په جغرافیه کې لومړی ځل گردهارد مرکاتور په ۱۵۳۸ م کال کې په خپله مشهوره نقشه کې د امریکا نوم ټولې لوېدیځې نیمې کرې ته استعمال کړ. له هغه وخت څخه یې وروسته تر ننه پورې دا نوې لویه وچه د امریکو په نوم، د امریکا لویه وچه نومولې ده.



### د ټولگي فعالیت

زده کوونکي دې په ډلو ووېشل شي او لاندېنیو پوښتنو ته دې ځواب ورکړي:

۱ـ کولمب ولې د هند د سفر لپاره د اروپا لوېدیځه لاره غوره کړه؟

۲ـ مسلمانو جغرافیه پوهانو د امریکا په کشفولو کې څه رول درلود؟

۳ـ جغرافیې پوهانو ولې دا نوې لویه وچه د امریکا په نوم ونوموله؟

### پوښتنې

۱ـ امریکا ته د کرستف کولمب د سفر موخه څه وه؟

۲ـ د امریکو سپوچي په خپل سمندري سفر کې کوم ځای کشف کړ؟

۳ـ لومړی ځل کوم جغرافیه پوه نومورې نوې لویه وچه د امریکا په نوم ونوموله؟

٤ـ په لومړیو کې د امریکا کلمه د امریکا د لویې وچې کومې برخې ته استعمالې ده؟

### کورنۍ دنده

د امریکو د سفر لوری د نقشې له مخې رسم کړئ او څرگنده کړئ چې هغه کوم لوی کار ترسره کړی دی..

# ۲،۲ طبيعي جغرافيه



راکي غرونه

د ر اتلونکي مخ نقشه په غور وګورئ او وواياست چې غرونه د دې لويې وچې په کومه برخه کې موقعيت لري؟

الف ـ د امريکا د لويې وچې د غرونو په هکله څه پوهېږئ؟

۱ ـ پخواني ټيټ زاړه غرونه

د اپالاش غرونه (Appalachian)

د شمالي امريکا د متحده ايالتونو په ختيځه برخه کې ټيټ غرونه شته چې د جيولوژۍ په لومړۍ دورې پورې اړه لري، د وخت په تېرېدلو سره يې لوړوالی لږ شوی او په اوسني وخت کې د ګردو لوړو څوکو، څوړلرونکو لمنو او پراخو واديو لرونکي دي. دا غرونه د شمال ختيځ څخه د جنوب لوېديځ په لور د ۱۵۰۰ کيلومترو په اوږدوالي غځېدلي دي او لوړه څوکه يې بلک دام Black Dame ده چې ۲۰٤٤ متره لوړوالی لري.

۲ ـ لوړ او ځوان غرونه

د راکي Rocky يا روشوز غرونه:

د آرام سمندر د غاړې په اوږدو کې له شمال څخه جنوب ته غځېدلي دي او د جيولوژۍ په درېمې دورې پورې اړه لري. دا غرونه ځوان او ډېر لوړ دي چې په ځينو سيمو کې يې لوړوالی ۶۰۰۰ مترو ته هم رسيږي، لوړه څوکه يې مک کينلی Mickinley په الاسکا کې ۶۱۹۳ متره لوړوالی

لري. د نوموړي غره په شمالي او جنوبي برخو کې فعال او غلي شوي اور غورځونې (آتشفشان) شته دي چې درنې زلزلې هم په هغو کې ژر، ژر رامنځ ته کېږي. لکه چې دارنګه لويه زلزله د شلمې پېړۍ په ١٩٦٤ م کال کې په الاسکا کې منځته راغله. د اپالاش او راکي غرونو د لړيو ترمنځ هوارې ځمکې او پراخې جلګې شته.

د شمالي امريکا د لويې وچې طبيعي نقشه



## د اندیز غرونه (Andes)

د اندیز غرونه د دې سیمې د اصلي اوسېدونکو په ژبه د شاتو د غرونو معنا لري. د غرونو دا لړۍ په جنوبي امریکا کې د آرام سمندر د غاړې په اوږدو کې له شمال څخه د جنوب لور ته د ۸۰۰۰ کیلومترو په اوږدوالي غځېدلې ده او لوړه څوکه یې اکانکاګوا Aconcagua په ارجنټاین کې ۶۹۶۰ متره لوړه ده. د دې ځوانو غرونو د جوړښت په پروسه کې اورغورځونې، عمودي حرکتونه او ورانوونکې زلزلې لاتر اوسه هم دوام لري. لکه چې په ۱۹۶۰ م کال کې د اندیز د غرونو په جنوبي برخو کې یوه ډېره درنه زلزله وشوه چې د چیلی زلزلې په نامه یادېږي. د دې زلزلې په پایله کې غلي شوي اتشفشان هم په فعالیت پیل وکړ، د ساحلي وچې ځینې برخې تر اوبو لاندې شوې، د سمندر په ځینو برخو کې ټاپوګان له اوبو څخه بهر شول او نوي ټاپوګان یې جوړ کړل.

د جنوبي امریکا د لویې وچې طبیعي نقشه



## د ډولګي فعالیت

زده کوونکي دې په څو ډلو وویشل شي او په مشوره دې دوه لاندیني تصویرونه په غور سره وګوري، د راکي د څوانو غرونو او د اپلاش د زړو غرونو ترمنځ ورته والی او توپیرونه دې په ګډې مشورې سره ولیکي او ټولګیوالو ته دې وړاندې کړي.


د اپلاش غرونه


راکي غرونه

## پوښتنې

د سمو پوښتنو لپاره د (س) توری او د ناسمو پوښتنو لپاره د (ن) توری ولیکئ:

۱ـ د اپلاش غرونه د جیولوژۍ د لومړي دوران د غرونو له ډلې څخه دي.

۲ـ د راکي د غرونو لړۍ له شمال ختیځ څخه د جنوب لوېدیځ لور ته پرته ده.




لاندې جملې بشپړې کړئ:

۱ـ د امریکا د لویې وچې ډېر لوړ غرونه .............. دي.

۲ـ د راکي د غرونو ډېره لوړه څوکه د .......... په نوم په ............ کې موقعیت لري.

۳ـ د انديز د غرونو ډېره لوړه څوکه د .............. په نوم په .......... کې موقعیت لري.

## کورنۍ دنده

د امریکا د لیکنې پرته نقشه رسم یا کاپي کړئ او د غرونو نومونه یې په ټاکلي ځای کې ولیکئ.

# ب ـ د امریکا د سیندونو په هکله څه پوهیږئ؟



د میسي سي پي سیند

د میسي سي پي سیند ولې په دې نوم نومول شوی دی؟

## د شمالي امریکا سیندونه

په شمالي امریکا کې له اوبو څخه ډک سیندونه شته چې له یوې خوا د ببرې چلولو او د مالونو په لیږدولو کې ګټور دي، او له بلې خوا یې د کرنې په برخه کې ډېرې آسانتیاوې رامنځته کړې دي. د شمالي امریکا د اتلانتیک د سمندر د حوزې ډېر لوی سیند د میسي سي پي (Mississippi) سیند دی چې د هندي بومي (اصلي) اوسېدونکو په ژبه د لوی سیند معنا لري. دا سیند د مینیسوتا (Minnesota) د ځنګلونو د ایتاسکا له جهیل څخه سرچینه اخلي او په هوارو او پراخه دښتو کې جنوب لور ته بهېږي، د بهیر په منځنۍ برخه کې ورسره له بنې خوا څخه ډېر لوی مرستیال د میسوري (Missouri) سیند یوځای کېږي. د میسوري سیند د هندي بومي (اصلي) اوسېدونکو په ژبه د خړو یا خټینو اوبو معنا لري.

د میسي سي پي د سیند اوږدوالی د میسوري د سیند له سرچینې څخه تر مصبه (خولې) د مکسیکو په خلیج کې (٦٤٢٠) کیلومتره دی چې د اوږدوالي له پلوه له نیل او امازون څخه وروسته دی. د کینڼ اړخ لوی مرستیال یې د اوهایو(Ohio) سیند دی چې د اپالاش له غرونو څخه سرچینه

اخلي او زیاتې اوبه لري. د میسي سي پي سیند زیاتې شګې او خټې له ځان سره راوړي او په مصب (خوله) کې یې لویه دلتا جوړه کړې چې هر کال ۱۰۰ متره د مکسیکو د خلیج خواته مخې ته ځي. دا سیند له خپلو ټولو مرستیالانو سره څه ناڅه ۲۰۰۰۰ کیلومتره د بېړۍ چلولو وړ دی او د کرنې په برخه کې ورڅخه هم ګټه اخیستل کېږي.

د شمالي امریکا د سیندونو نقشه



د سنت لارنس سیند (St.Lawrence) پنځګوني جهیلونه د اتلانتیک له سمندر سره نښلوي. دا سیند د کنګل کېدلو له امله ټول کال د بېړیو چلولو وړ نه دی. د شمالي کنګل سمندر (Arctic ocean) د حوزې سیندونه له واورو څخه سرچینه اخلي او د کال زیات وخت کنګل وي. د دې حوزې ډېر لوی سیند د میکنزي (Mackenzie) سیند دی چې سرچینه یې دګریت سلیو له جهیل او د اتابسکا (Athabasca) له سیند څخه او مصب (خوله) یې په شمال کې د بیو فورت (Beaufort) په سمندرګي کې ده. دا سیند د شمالي امریکا د یوه څېړونکي ماکینزي په نوم نومول شوی دی.

د آرام سمندر (بحر الکاهل) د حوزې سیندونه نسبتاً لنډ، لږ لوړوالی او د چټک بهیر لرونکي دي. د دې حوزې لوی سیندونه کولمبیا Columbia او کلورادو Colorado دي. دا سیندونه د راکي له غرونو څخه سرچینه اخلي او په آرام سمندر کې توییږي. د کلورادو سیند ژوره وادي چې دیوالونه یې عمودي دي منځ ته راوړې، سرچینه یې بارانونه او واورې تشکیلوي او د مکسیکو په هېواد کې د کلفورنیا په خلیج کې توییږي. د دې سیند اوږدوالی ۴۵۰ کیلومتره دی، اوبه یې خټینې او سرې دي، نو ځکه اسپانویانو هغه د کلورادو په نامه نومولی دی.

## د ټولګي فعالیت

زده کوونکي دې د ښوونکي تر لارښوونې لاندې په ډلو وویشل شي او هره ډله دې د لاندېنیو مطالبو په هکله بحث او خبرې وکړي او د امریکا په نقشه کې دې وښیي:

ـ د میسي سي پي سیند
ـ د میکنزي سیند
ـ د کلورادو سیند
ـ د سنت لارنس سیند

## پوښتنې:

لاندې نیمګړې جملې په مناسبو کلمو ډکې کړئ:

۱ـ د میسي سي پي د سیند له .........ځخه سرچینه اخلي.

۲ـ د میسي سي پي سیند د چپ اړخ لوی مرستیال............. دی.

لنډ ځواب ورکړئ:

۱ـ د شمالي کنګل سمندر د حوزې د لویو سیندونو نومونه وواياست.

۲ـ د کلورادو د سیند اوبه چېرې توییږي؟

۳ـ د میسي سي پي سیند د اوږدوالي له پلوه په نړۍ کې کوم مقام لري؟

٤ـ د کولمبیا د سیند مصب چېرې دی؟

٥ـ د اتلانتیک سمندر د حوزې د مهمو سیندونو نومونه وواياست؟




## کورنۍ دنده:

د امریکا د لیکنې پرته (سپینه) ورکړل شوې نقشه رسم یا کاپي کړئ او په هغې کې د سیندونو نومونه ولیکئ او د جغرافیې په راتلونکي لوست کې یې زده کوونکو ته وښیئ.

# د جنوبي امریکا سیندونه




د سوېلي امریکا سیندونه

ستاسو له نظره، ولې په جنوبي امریکا کې له اوبو ډک سیندونه شته؟

د استوایي سیمو ډېر اورښتونه د دې سبب شوي چې په دې لويه وچه کې زيات او له اوبو ډک سیندونه منځ ته راشي. د انديز غرونه د جنوبي امريکا په لوېديځه غاړه کې اوږده پراته دي چې د دې قطعې د ختيځې حوزې ترمنځ د اوبو د وېش پولې په توګه ګڼل کېږي.

د انديز د غرونو د ختيځې برخې د ټولو لويو سيندونو اوبه د اتلانتيک سمندر ته تويېږي. د دې وچې د سيندونو اساسي سرچينه سيمه اييز بارانونه دي چې د امازون په حوزه کې هره ورځ اورېږي او په دوامداره توګه د سيندونو اوبه زياتوي. د امازون سيند د نړۍ د ډېرو زياتو اوبو لرونکی سيند دی.

د امازون د سيند اوږدوالی د هغه له مرستيال د يوکايالي Ucayali له سيند سره (د پيرو په هېواد کې) ٦٤٨٠ کيلومتره دی او په اتلانتيک سمندر کې تويېږي، چې په دې توګه د نيل له سيند څخه وروسته دويم مقام لري. دا سيند له هوارو سيمو څخه تېرېږي ډېرې لړې څوړې لري او د خپل بهير په اوږدو کې څه ناخه ٥٠٠ مرستيالان ورسره يوځای کېږي، نو ځکه ټول کال له اوبو څخه ډک وي او د مستېدو لوړه اندازه يې د جنوبي نيمې کرې د اوړي د موسم اخر وي. د امازون د سيند ټوله حوزه استوايي ځنګلونو پوښلې ده چې د ربړ ونې يې له اقتصادي مهمو پيداوارو څخه دي. د ښۍ غاړې لوی مرستيال يې د ماديرا Madeira سيند او د کيڼې غاړې مرستيال يې د نګرو Negro سيند دی. د

سیند زیات ژوروالی او زیاتې اوبه د دې سبب شوې چې د زرګونو کیلومترو د واټن په وهلو سره بېړۍ د دغه سیند په بهیر کې تګ او راتګ وکړي.

د امازون کلمه د سیمه ییزو خلکو په ژبه ډېر زوړ او غړ لرونکو اوبو په معنا ده. په دې سیند کې د سمندري مد په وخت کې څپې عموداً د پنځو مترو په لوړوالي په ډېر لوړ غړ د سیند د اوبو د حرکت په خلاف پورته حرکت کوي او د شور او زوړ د منځ ته راتلو سبب کېږي. د جنوبي امریکا نور لوی او د اوبو ډک سیندونه د پارانا Parana او اورینوکو Orinoco سیندونه دي. د پارانا سیند خپلې اوبه د برازیل د غرونو له لوېدیځو لمنو او د هغه د ننني هوارو سیمو څخه اخلي. اوږدوالی یې ۴۷۰۰ کیلومتره دی او د اتلانتیک په سمندرکې تویېږي. د ګیانا Guiyana د غرونو شمالي لمنې او د اورینوکو هوارۍ د اورینوکو د سیند حوزه جوړوي. نوموړی سیند له هوارو ځمکو څخه تېرېږي، اوږدوالی یې ۲۷۳۰ کیلومتره دی او د بېړیو چلولو وړ دی.

د اورینوکو د سیند د یوه مرستیال په بهیر کې د انجیل ځروبی د ونزویلا په هېواد کې پروت دی چې د نړۍ ډېر لوړ ځروبی ګڼل کېږي او لوړوالی یې ۱۰۵٤ متره ته رسېږي.

## د ټولګي فعالیت

زده کوونکي دې په ډلو ووېشل شي. هره ډله دې په لاندې موضوعاتو بحث او خبرې وکړي او پایلې دې ټولګیوالو ته ووایي.

د امازون، پارانا او اورینوکو د سیندونو سرچینه او مصب چېرې دي او څه اقتصادي ارزښت لري.

## پوښتنې

سم ځوابونه د (س) په توري او ناسم(غلط) ځوابونه د (ن) په توري په نښه کړئ:

۱- د امازون سیند د اوبو د حجم له پلوه د نړۍ لوی سیند دی (     ).

۲- د پارانا د سیند اوبه د اتلانتیک سمندر ته تویېږي (     ).

سم ځواب په نښه کړئ:

۳- د نړۍ ډېر لوړ ځروبی په لاندې کوم یوه هېواد کې دی؟

الف ـ ارجنټاین　　ب ـ برازیل　　ج ـ ونزویلا　　د ـ اکوادور

٤ـ د اورینوکو سیند چېرې تویېږي؟

الف ـ د مکسیکو په خلیج کې　　ب ـ د اتلانتیک په سمندرکې

ج ـ په آرام سمندر کې　　د ـ د کارابین په سمندرګي کې

لاندې نیمګړې جملې په مناسبو کلمو ډکې کړئ:

۵ـ د امازون د سیند سرچینه د .................. تشکیلوي.

٦ـ د امازون د سیند د ښي غاړې لوی مرستیال ........ او د کیڼې غاړې لوی مرستیال یې .......... دی.

## کورنۍ دنده:

د (٦٤) مخ د امریکا له لیکنۍ پرته نقشه انځور او یا کاپي کړئ او په هغې کې د سیندونو نومونه ولیکئ او د جغرافیې په راتلونکي ساعت کې یې ټولګیوالو ته وښیئ.

# د امریکا د جهیلونو په هکله څه پوهیږئ؟




د شمالي امریکا د پنځه گونو جهیلونو نقشه

ستاسو له نظره، د امریکا د جهیلونو په منځ ته راتگ کې اغیزمن عوامل کوم دی؟

په تېرو لوستونو کې د جهیلونو له اصطلاح سره آشنا شوي یاست. د امریکا په لویه وچه کې د طبیعي ځانگړتیاوو پر بنسټ زیات جهیلونه شته دي. د شمالي امریکا لوی جهیلونه سوپریر(Superior) ۸۳۲۷۰ کیلومتره مربع، مشیگان(Michigan) ۵۸۲۰ کیلومتره مربع، هورن(Huron) ٦۰۷۰۰ کیلومترمربع، ایري(Eerie) ۲۵٦۸۰ کیلومتر مربع او انتاریو Ontario چې ۱۹۲۳۰ کیلومتره مربع دی. د انتیاریو جهیل د سنت لورنس Sent Laurence د سیند په پواسطه د سنت لورنس د خلیج او د اتلانتیک له سمندر سره نښتی دی.

د سوپریر جهیل د پراخوالي له پلوه ډېر پراخ او د خوږو اوبو د درلودلو له امله په نړۍ کې لومړنی مقام لري. دا جهیلونه د کنگلونو (یخچالونو) په سبب رامنځ ته شوي او د اوبو سطحه یې سره توپیر لري. د سوپریر، هورن او مشیگان جهیلونه د کوچنیو ابناگانو په وسیله یو له بل سره نښتي دي، خو د ایري جهیل بېل دی او د انتاریو جهیل د سنت لورنس د سیند په واسطه د اتلانتیک له سمندر سره نښتی دی. د نیاگارا ځروبي ته په بومي ژبه نیاگارا (زوږ او غږ لرونکې) اوبه وایي چې د نیاگارا د سیند په بهیر کې چې د ایری او انتاریو جهیلونه سره نښلوي، رامنځ ته شوی دی چې اوبه یې له شمال څخه جنوب لور ته، یعنې له کاناډا څخه د متحده ایالاتو خاورې ته تویېږي. په همدې برخه کې د اوبو د برېښنا ستېشن هم جوړ شوی دی چې په دواړو هېوادونو کاناډا او متحده ایالاتو پورې اړه لري. د دې

جهيلونو اوبه د بېړيو چلولو وړ دي او د مشيګان جهيل د کانال په واسطه د ميسي سي پي له سيند سره هم نښلول شوی دی. د متحده ايالاتو د لوېديځ او جنوب لوېديځ جهيلونه تقريباً سمندر ته لار نه لري او د دې حوزې لوی جهيل د ګريت سالت Great Salt په نوم يادېږي.

د سپوږمکی په وسيله د جهيل تصوير



د کاناډا د هېواد جهيلونه زياتره د کنګلونو (يخچالونو) تر اغېزې لاندې دي. دې جهيلونو د ۱۰۰۰۰ کيلومترو مربعو په پراخوالي د لوارنشين پليتو Lauruntion Plateau لوړې له جنوب ختيځ، جنوب او جنوب لوېديځ لوري راچاپېره کړي دي. د (۶۲) مخ نقشې ته پام وکړئ.

لومړۍ ګڼه جدول: د کاناډا نور جهيلونه (اضافي معلومات)

| ګڼه | د جهيل نوم | موقعيت | د اوبو ډول |
|---|---|---|---|
| ۱ | ګريت بير Great Bear | کاناډا | يخچالي او دخوږو اوبو لرونکی |
| ۲ | ګريت سيلو Great Slave | کاناډا | يخچالي او د خوږو اوبو لرونکی |
| ۳ | ويني پک Winnipeg | کاناډا | يخچالي او د خوږو اوبو لرونکی |
| ٤ | مني توبا Manitoba | کاناډا | يخچالي او د خوږو اوبو لرونکی |

د دې جهيلونو لومړنی بستر په يخچالي پروسې پورې اړه لري. تقريباً د کاناډا ټولو سيندونو له جهيلونو څخه سرچينه اخيستې او يو شمېر يې مخکې له دې چې سمندرونو او يا د هډسن خليج ته ورسېږي له لسګونو جهيلي سيمو څخه تېرېږي.

په منځنۍ امریکا کې تکتونیکي ژورو، غرونه سره جلا کړي دي او پراخه او ژور جهیلونه یې رامنځ ته کړي دي، د ټولو لوی یې د نیکاراګوا Nicaragua جهیل دی چې ۱٦٧ کیلومتره اوږدوالی او ۷۰ متره ژور والی لري چې د نیکاراګوا د هېواد په لوېدیځ کې موقعیت لري. دا جهیل د فعالو او غیر فعالو اتشفشاني ټاپوګانو لرونکی هم دی. په جنوبي امریکا کې د بولیویا او پیرو د هېوادونو په پوله کې د ټي ټي کاکا Titicaca جهیل چې د سمندر له سطحې څخه ۳۸۱۲ متره لوړوالی لري، پروت دی چې د دې لویې وچې ډېر لوړ جهیل شمېرل کېږي.

### د ټولګي فعالیت

زده کوونکي دې په ډلو ووېشل شي او لاندې پوښتنو ته دې د (٦۰) او (٦۳) مخ د نقشې په اساس ځواب ورکړي او د هرې ډلې استازی دې د خپل کار پایلې ټولګیوالو ته ولولي.

۱_ د کاناډا د جهیلونو موقعیت په نقشې کې وټاکئ؟

۲_ د متحده ایالاتو د جهیلونو موقعیت په نقشې کې وټاکئ

۳_ د منځنۍ امریکا د جهیلونو موقعیت په نقشه کې وټاکئ

٤_ د جنوبي امریکا د جهیلونو موقعیت په نقشه کې وټاکئ

### پوښتنې

۱_ د شمالي امریکا لوی جهیلونه کوم دي؟

۲_ د کاناډا لوی جهیلونه کوم دي؟

۳_ ولې د ځینو جهیلونو اوبه خوږې او د ځینو مالګینې وي؟

٤_ د امریکا د لویې وچې ډېر لوړ جهیل کوم دی؟

### کورنۍ دنده

د امریکا د لویې وچې طبیعي نقشه له (٦٤) مخ څخه کاپي یا انځور کړئ او د جهیلونو نومونه یې ولیکئ او د جغرافیې په راتلونکي ساعت کې یې ټولګیوالو ته وښیئ.

# د امريکا د سمندرگيو په هکله څۀ پوهېږئ؟

د کارابين سمندرگی

## سمندرگي څه اقتصادي ارزښت لري؟

د امريکا د لويې وچې شاوخوا څخه پراخه اوبه چاپېره شوي دي او ډېر سمندرگي لري د دې لويې وچې ډېر لوی سمندرگی د کارابين سمندرگی دی چې د غرب الهند د ټاپوگانو ( د لوی انتيل د ټاپوگانو ځينې لکه کيوبا، هايتي، جاميکا، پورتوريکو او د کوچني انتيل ټاپوگان چې اورغورځوونکي منشاء لري، لکه ترينيداد او توباگو او داسې نور)، د منځنۍ امريکا د ختيځو غاړو او د جنوبي امريکا د شمالي غاړو ترمنځ پروت دی او پراخوالی (مساحت) يې ۱۹٤۳۰۰۰ کيلومترو مربعو ته رسېږي. دا سمندرگی د جغرافيايي موقعيت له مخې، په استوايي عرض البلدونو کې د تودوخې د لوړې درجې (د سانتي گراد ۲٤ څخه تر ۲۷ درجو) او د لړې مالگې د لرلو په سبب د سمندر له اوبو څخه يې توپير کېږي. د کارابين سمندرگی د اقتصادي او ستراتيژيکي ځانگړي ارزښت لرونکی دی او د نړۍ د سمندري سوداگريزو د مهمو لارو په تگ لوري کې چې د اتلانتيک له سمندر څخه آرام سمندر ته له پانامې کانال څخه تېرېږي او له گنې گونې څخه ډېره ډکه د اوبو لاره ده، پروت دی. د دې سمندرگي غاړې لږ لوړوالی لري او لوی سوداگريز بندرونه يې په غاړو کې جوړ شوي دي.

د امریکا د لویې وچې شمالي او شمال ختیځ سمندرګي، لکه د بیوفورت Beaufort سمندرګی د کاناډا په شمال او د لابرادور Labrador سمندرګی د کاناډا په ختیځ کې د اقلیم له پلوه د شمال منجمد سمندر سره ورته والی لري. څه ناخه ټول کال کنګل او د تودوخې درجه یې د سانتي ګراد له منفي ۵۰ درجو څخه کښته وي او حتی دوبی یې له یوې نیمې څخه تر دوو میاشتو دوام کوي، کله، کله یې د تودوخې درجه د سانتي ګراد له ۱۰ درجو څخه پورته ځي، له دې امله د قطبي سمندرګیو په نوم یادېږي او یوازې د خېړنو لپاره بېړۍ په کې تګ او راتګ کوي. په غاړو او ژورو برخو کې یې ځینې سمندري حیوانات، لکه کبان ژوند کوي. د بیوفورت له سمندرګی څخه نفت هم را ایستل کېږي.

- د آسیا او امریکا د لویو وچو ترمنځ کوم سمندرګي او آبنا پراته دي؟

د الاسکا د ایالت په شمال لوېدیځ کې د چوکاتسک یا چي چي (Chichi) سمندرګی پروت دی چې د کال زیاتره وخت کنګل وي. د شمالي امریکا او د آسیا د لویو وچو ترمنځ بل لوی سمندرګی د بیرنګ Bering په نوم د ۲۲۶۹۰۰۰ کیلومترمربع د پراخوالي په لرلو سره پروت دی. دا سمندرګی د بیرنګ د ابنا له لارې چې ۸۵ کیلومتره سور لري، د شمالي کنګل سمندر سره نښلي. شمالي برخه یې د ژمي په اوږدو کې کنګل وي، خو جنوبي برخې یې نه منجمد کېږي او د بېړیو چلولو وړ دي.

(۶۰) مخ نقشې ته وګورئ.

## د ټولګي فعالیت

زده کوونکي دې په څو ډلو ووېشل شي او هره ډله دې د ۶۲ مخ نقشه انځور او یا کاپي کړي او نومونه دې په ټاکلو ځایونو کې ولیکي او د هرې ډلې استازی دې هغه ټولګیوالو ته وښیي.

## پوښتنې

۱ـ دامریکا د لویې وچې کوم سمندرګی ټول کال د بېړیو چلولو وړ دی؟

۲ـ د کوم کانال له لارې، د اتلانتیک سمندر د آرام له سمندر سره نښلول شوی دی؟

۳ـ د بیرنګ سمندرګی د امریکا په کومه برخه کې پروت او کومې لویې وچې یې سره بېلې کړې دي؟

٤ـ د امریکا د لویې وچې شمالي سمندرګی د کارابین له سمندرګي سره پرتله کړئ؟

## کورنۍ دنده

د امریکا له لیکنې پرته نقشه له (۶۲) مخ څخه کاپي کړئ، د سمندرګیو موقعیت په کې وټاکئ او د جغرافیې په راتلونکي درسي ساعت کې یې ټولګیوالو ته وښیئ.

# د امریکا د لویې وچې د خلیجونو په هکله څه پوهیږئ؟




مخامخ نقشې ته وګورئ.
ولې د امریکا په لویه وچه کې ډېر خلیجونه شته دي؟

## د شمالي امریکا خلیجونه

د امریکا لویه وچه ډېر خلیجونه لري، ځکه د دې لویې وچې ښه موقعیت د دوو سمندرونو(اطلس او آرام سمندر) ترمنځ او په اوچه کې د اوبو ننوتلو له کبله د ډېرو خلیجونو منځته راتګ سبب شوی دی.

په دې لویه وچه کې د سوداګرۍ او بېړیو جوړولو د صنعت پرمختیا هم د همدې خلیجونو د شته والي له امله ده. د شمالي امریکا په جنوب ختیځ کې د مکسیکو خلیج پروت دی چې د فلوریدا د ټاپو وزمې په وسیله د اطلس (اتلانتیک) له سمندر څخه بېل شوي دي.

دې خلیج سربېره پردې چې د بېړیو چلولو لپاره یې ښه شرایط برابر کړي دي، په سواحلو کې یې د نفتو، طبیعي ګازو او مالګو زېرمې هم شته دي.

د ګلف ستریم تود بهیر د مکسیکو د خلیج له سیمې څخه تېرېږي چې د دې سیمې د اقلیم د بدلون او د اوبو د سطحې د پورته کېدو لامل کېږي.

د دې سیمې بل لوی خلیج د مکسیکو د هېواد په ختیځ کې د کامپیچ Campeche خلیج دی.

د شمالي امریکا په ختیځو غاړو کې د اطلس د سمندر اوبه په وچې کې ننوتلې چې په ځینو برخو کې یې ژور او په ځینو نورو برخو کې یې لږ ژور خلیجونه رامنځ ته کړي دي. دا خلیجونه د فلوریډا له ټاپو وزمې څخه پیل او د بافین Baffin په سیمه کې خپل اعظمي سور ته رسېږي. د کاناډا شمالي خلیجونه د اقلیمي رژیم له پلوه شمالي منجمد سمندرته ورته والی لري او د بېړیو چلولو وړ نه دي.


د مکسیکو د خلیج تصویر

دویمه ګڼه جدول: د شمالي امریکا خلیجونه ( اضافي معلومات)

| ګڼه | د خلیج نوم | | موقعیت |
|---|---|---|---|
| ۱ | سنټ لارنس | St Lawrence | د اطلس د سمندر په غاړه د کاناډا په ختیځ کې |
| ۲ | هوډسن | Hudson | د اطلس سمندر په غاړه دکاناډا په ختیځ کې |
| ۳ | بافین | Baffin | د اطلس سمندر په غاړه د کاناډا په شمال ختیځ کې |
| ۴ | اموندسن | Amundsen | د شمال کنګل سمندر په غاړه د کاناډا په شمال کې |
| ۵ | فونډی | Foundy | د اطلس سمندر په غاړه د کاناډا په جنوب ختیځ کې |

ټولې هغه اوبه چې د امریکا د لویې وچې شمالي او شمال ختیځې غاړې یې راچاپېره کړې دي، د کال په اوږدو کې یې تودوخه ډېره ټیټه او کله هم د سانتي ګراد له مثبت ۱۰ درجو څخه نه اوړي، د کال زیاتره وختونه کنګل وي نو له همدې امله، د هوډسن د خلیج سړې اوبه او د مکسیکو د خلیج تودې اوبه د شمالي امریکا پر اقلیم باندې مستقیمه اغېزه لري.

د شمالي امریکا د ارام سمندر غاړې لږې وتلې او ننوتلې دي، خو د دې وچې په شمال لوېدیځو غاړو کې لوی او کوچنې ټاپوګان پراته دي چې ډېرې وتلې او ننوتلې غاړې لري. د دې سیمې له ډېرو لویو خلیجونو څخه یو هم د کلفورنیا خلیج دی چې د کلفورنیا California د ټاپو وزمې په ختیځ کې موقعیت لري او د کلورادو سیند په هغه کې تویېږي. دا خلیج اوږد او کم سوره دی او یوه ماته او ژوره ساحه یې رامنځ ته کړې ده. د الاسکا Alaska خلیج د دې ساحې بل لوی خلیج دی چې د امریکا د لویې وچې په شمال لوېدیځ کې موقعیت لري. د یادونې وړ ده چې ټول لوی او ژور خلیجونه د بېړیو چلولو او بندرونو د جوړونې لپاره ښه شرایط برابر وي.

## د ټولګي فعالیت

زده کوونکي دې په ډلو ووېشل شي او د امریکا د لویې وچې نقشه دې له (۶ ۲) مخ څخه کاپي کړي او د شمالي امریکا د مهمو خلیجونو نومونه دې د هغې پر مخ ولیکي او د ډلې استازی دې هغه ټولګیوالو ته وښيي.

## پوښتنې

۱ـ د مکسیکو له خلیج څخه څه اقتصادي ګټه اخیستل کېږي؟

۲ـ د شمالي امریکا په ختیځ کې کوم لوی او ژور خلیجونه شته؟

۳ـ د امریکا شمالي خلیجونه ولې د بېړیو چلولو وړ نه دي؟

٤ـ د شمالي امریکا د لوېدیځې غاړې لوی خلیجونه کوم دي؟

## کورنی دنده:

لاندې جدول بشپړ کړئ او د جغرافیې په راتلونکي درس کې یې ټولګیوالو ته ولولئ.

| ګڼه | د خلیج نوم | موقعیت | اقتصادي ارزښت |
|---|---|---|---|
| ۱ | مکسیکو | د شمالي امریکا په جنوب ختیځو برخو کې | |
| ۲ | سنټ لارنس | | د بېړیو چلولو وړ دی |
| ۳ | هوډسن | | |
| ٤ | الاسکا | | |
| ۵ | کلفورنیا | | |

# د جنوبی امریکا خلیجونه



د سویلي امریکا نقشه

آیا د سویلي امریکا ټول خلیجونه د سوداګرۍ د لویو بېړیو چلولو ته برابر دي؟

د سویلي امریکا د خلیجونو په هکله څه پوهېږئ؟

د سویلي امریکا د اطلس (اتلانتیک) سمندر په غاړو کې لوی خلیجونه چې په وچه کې ډېر ننوتلي وي، نشته دي. یوازې د ارجنټاین د هېواد په جنوب ختیځو غاړو کې نیمه دایروي شکله خلیجونه لیدل کېږي. د پارانا Parana د سیند په خوله (مصب) کې د ریودو لاپلاتا اوږده او پراخ سواحل پراته دي. د هغه په شمال کې د سادومارکوس کوچنی خلیج موقعیت لري چې د بېړیو چلولو لپاره یې د بندر جوړونې ښه شرایط برابر کړي دي. د امازون د سیند خوله هم د بېړیو چلولو وړ ده. د کارابین د سمندرګي په غاړو کې

دریمه ګڼه جدول: د جنوبي امریکا نور خلیجونه (اضافي معلومات)

| ګڼه | د خلیج نوم | موقعیت |
|---|---|---|
| ۱ | سان ماتیاس (San Matias) | د ارجنټاین په ختیځ کې د اطلس سمندر په غاړه |
| ۲ | بلانکا (Blanca) | د ارجنټاین په ختیځ کې د اطلس سمندر په غاړه |
| ۳ | سان جورج (San jorgs ) | د ارجنټاین په ختیځ کې د اطلس سمندر په غاړه |
| ۴ | ګراند (Granda) | د ارجنټاین په ختیځ کې د اطلس سمندر په غاړه |

د ونزویلا لوی خلیج پروت دی چې ځانګړی سوداګریز ارزښت لري. د جنوبي امریکا په شمال لویدیځ کې د ارام سمندر په غاړه د پاناما لوی خلیج پروت دی چې د پانامې د کانال له لارې یې د بېړیو چلولو لپاره ښه شرایط برابر کړي دي. همدارنګه د استوا د کرښې جنوب ته د اکوادور په هېواد کې د ګوایاکویل Guayaquil لوی خلیج پروت دی چې د ګوایاکویل لوی بندر هم دلته جوړ شوی دی او د هغه په جنوب کې د عرض البلد تر ۳۰ درجو پورې د هغه سواحل وتلي او ننوتلي نه دي او د غاړو لوړوالی یې هم ډېر دی چې د بېړیو لنګر اچولو ته برابر نه دي خو د آرام سمندر د سواحلو په جنوبي وروستیو برخو کې د چیلي په هېواد کې ډېرې ننوتلې او وتلې شته، خلیجونه یې تاوراتاو او سورور دي لکه کورکوادو Corcovado او دي پنیاس De penas چې د پراخو او ژورو خلیجونو د سمندري سوداګریزو بندرونو جوړونې ته یې مناسب شرایط برابر کړي دي. ډېر هېوادونه سره له دې چې پراخې سمندري غاړې لري، خو د خلیجونو د نه درلودلو یا د نابرابرو او لږ ژورو خلیجونو د لرلو په سبب د بېړیو چلولو لپاره د ګټې اخیستنې وړ نه دي.

په لاتینه امریکا کې د خلیجونو انځورونه



## د ټولګي فعالیت

زده کوونکي دې په څو ډلو وویشل شي، د ٦٢ مخ نقشه دې کاپي کړي او په هغې کې دې د لویو خلیجونو نومونه په ټاکلو ځایونو کې ولیکي.

الف ـ د جنوبي امریکا شمالي خلیجونه          ب ـ د اطلس سمندر د غاړو خلیجونه

ج ـ د آرام سمندر د غاړو خلیجونه

## پوښتنې

۱ـ لاندې پوښتنې بشپړې کړئ:

ـ د اکوادور د هېواد د ............... خلیج په غاړه لوی تجارتي بندر جوړ شوی دی.

ـ د چیلي د هېواد لوی خلیج ................. دی.

۲ـ لنډ ځواب ورکړئ:

ـ کوم سواحل په طبیعي توګه د بندرونو جوړونې ته مناسب نه دي؟

ـ ستاسو له نظره، له خلیجونو څخه څه اقتصادي ګټې اخیستل کېږي؟

## کورنی دنده

د آرام سمندر د غاړو خلیجونه د اطلس د سمندر د غاړو له خلیجونو سره د بندرونو د جوړونې او بېړۍ چلونې له پلوه پرتله کړئ.

# د امریکا د لويې وچې د اقليم په هکله څه پوهېږئ؟



د نړۍ د سمندري تودو او سړو اوبو د بهير نقشه

د نړۍ کومه لويه وچه د نړۍ ټول نباتات او اقليمونه لري؟

د امريکا لويه وچه د نړۍ د نورو لويو وچو په خلاف په شمالي او جنوبي دوه نيمو کرو کې موقعيت لري، نو ځکه د نړۍ د ټولو نباتاتو او اقليمونو ډولونه لري.
د (۷۸) مخ نقشې ته وګورئ.

ـ شمالي امريکا د کومو اقليمي سيمو لرونکې ده؟

شمالي امريکا د منځنۍ امريکا په ګډون د شمالي عرض البلد د ۷ او ۸۳ درجو ترمنځ پرته ده چې په دې ترتيب له شمال څخه جنوب ته ټولې اقليمي سيمې له استوا څخه پرته رانغاړي چې دارنګه ډېره برخه يې په قطبي او معتدله او لږه برخه يې تر استوا لاندې په (منځنۍ امريکا کې) پرته ده.
دا ډول موقعيت د شمالي او جنوبي برخو ترمنځ د تودوخې د درجې د توپير سبب کېږي. د شمالي امريکا په ختيځه برخه کې لوړ غرونه نشته، نو ځکه د اتلانتيک د سمندر له خوا د ختيځو مرطوبو کتلو د راتګ لپاره برابره ده خو په لوېديځ کې د راکي غرونه د آرام سمندر له خوا د مرطوبو هوايي کتلو د بهير خنډ ګرځي.
د شمالي منجمد سمندر او د مکسيکو د تود خليج ترمنځ د دښتو شته والی د استوايي او قطبي عرض البلدونو ترمنځ له شمال څخه جنوب لور ته د هوايي کتلو د تبادلې شرايط د کال په ټولو

موسمونو کې برابر کړي دي.

د اتلانتیک په سمندر کې د شمالي او جنوبي برخو ترمنځ د تودوخې د درجې توپیر لیدل کېږي، یعنې د ګلف ستریم تود بهیر د شمالي امریکا جنوب ختیځ سواحل تودوي او د لابرادور سوړ بهیر د کاناډا ختیځې برخې سړوي. د شمالي امریکا په لوېدیځ کې د آرام سمندر د کوروشیو تود بهیر د شمال په لوري او د کلفورنیا سوړ بهیر دجنوب په لوري د کال په اوږدو کې د تودوخې د بدلون سبب کېږي.

د شمالي امریکا ډېرې مرطوبې سیمې په ختیځ کې د اتلانتیک د سمندر غاړې او په لوېدیځ کې د آرام سمندر سواحل دي، ډېرې وچې سیمې د راکي د غرونو منځنۍ سیمې دي چې د اورښت اندازه یې ډېره لږه ده. د شمالي امریکا په شمال کې د تندرا سړه سیمه، د هغې په جنوب کې معتدله سیمه او د معتدلې سیمې په جنوب کې د سب تروپیک سیمه پرته ده.

جنوبي امریکا د کومو اقلیمي سیمو لرونکې ده؟

جنوبي امریکا د شمالي عرض البلد ۱۲ درجو او د جنوبي عرض البلد د ٥٦ درجو ترمنځ پرته ده او ډېره برخه یې په توده منطقه کې پرته ده. یعنې د خاورې زیاته برخه یې د سرطان او جدي د کرښو ترمنځ په استوایي یا حاره یي سیمه کې او لږه جنوبي برخه یې په معتدله سیمه کې پرته ده. د جنوبي امریکا په لوېدیځه برخه کې د اندیز د غرونو طبیعي حالت او په ختیځ کې پراخې هوارې پر اقلیم غوره اغېزه لري. د اندیز د غرونو لړۍ ختیځې خواته د لمدې هوا د ورتګ خنډ ګرځي.



تر استوا لاندې د سیمې انځور

د دې لویې وچې په ختیځو غاړو کې تقریباً د استوا کرښې ته نژدې د استوا د تودو اوبو بهیر تېرېږي چې په شمال لوېدیځ او جنوب لوېدیځ کې د برازیلین(Brazilian Stream) په تودو بهیرونو وېشل کېږي او په ژمي کې د جنوبي امریکا په سواحلو کې د تودوخې د سانتي ګراد څه ناڅه ۳ درجو د زیاتوالي سبب کېږي. د جنوبي امریکا د لوېدیځو سواحلو په اوږدو کې د پیرو په نوم د سړو اوبو (Peru Stream) بهیر له جنوب څخه شمال لور ته د استوا تر کرښې پرمخ ځي او د ساحلي هوا تودوخه راښکته کوي، ان تردې چې د استوا په مدار کې د تودوخې کچه ٤ درجې راښکته کوي. د دې بهیر بل ښاخ د جنوبي امریکا جنوب ختیځ سواحل هم سړوي.

د معتدله سیمې انځور



## د ډولګي فعالیت

زده کوونکي دې په پنځه کسيزو ډلو وويشل شي او هره ډله دې د امريکا د لويې وچې اقليمي نقشه د هغې له لارښود سره چې په کې هره اقليمي سيمه په ځانګړي رنګ سره ښودل شوې ده په غور سره وګوري او هره ډله دې د يوې اقليمي سيمې د ځانګړتيا په هکله ځواب برابر کړي او ټولګيوالو ته دې وړاندې کړي.

۱ـ سوړ اقليم
۲ـ معتدل اقليم
۳ـ سب تروپيك اقليم
٤ـ د تندرا اقليم




## پوښتنې

سم ځواب د (س) په توري او ناسم ځواب د (ن) په توري په نښه کړئ:

۱ـ د امريکا لويه وچه په شمالي او جنوبي دوه نيمو کرو کې پرته ده (      ).

۲ـ د شمالي امريکا د خاورې ډېره برخه په توده او استوايي سيمه کې پرته ده (      ).

لنډ ځواب ورکړئ:

۱ـ کوم سمندري بهيرونه د امريکا د لويې وچې پر اقليم اغېزه کوي؟

۲ـ کوم غرونه د امريکا لويې وچې ته د آرام سمندر له لوري د لنده بل خنډ ګرځي.




## کورنی دنده

د امريکا د لويې وچې سپينه نقشه د ورکړل شوې اقليمي نقشې پر بنسټ رسم او رنګ کړئ.

شپږ ویشتم لوست

# د امریکا د سیاسي جغرافيې په هکله څه پوهېږئ؟




د امریکا سیاسي نقشه

د امریکا په لویه وچه کې څو خپلواکه هېوادونه شته؟

د امریکا لویه وچه د ۴۲،۳ میلیونو کیلومترو مربعو په پراخوالي سره په دوو شمالي او جنوبي نیموکروکې موقعیت لري. دا لویه وچه په ۵۱ سیاسي واحدونو وېشل شوې ده چې له هغې جملې څخه ۳۵ واحده یې خپلواکه هېوادونه او نور پاتې یې لاتر اوسه د بهرنیو هېوادونو تر کنټرول لاندې دي. په شمالي امریکا کې چې د انګلوساکسون په نوم هم یادېږي د (امریکا متحده ایالاتونو (اتازونې) او کاناډا) دوه هېوادونه پراته دي. د امریکا د متحده ایالتونو هېواد د ۹،۳۶۳،۰۰۰ کیلومترو مربعو په پراخوالي سره د نړۍ څلورم لوی هېواد دی چې له ۵۰ ایالتونو څخه جوړ شوی دی، نو له همدې امله یې د هېواد رسمي بیرغ ۵۰ ستوري لري.

د حکومت ډول یې فدرالي جمهوریت دی او جمهور رئیس یې د څلورو کلونو لپاره ټاکل کېږي.
کاناډا د (۹،۹۷۰،۶۱۰) کیلومترو مربعو په پراخوالي سره د روسیې له هېواد څخه وروسته د نړۍ پراخه هېواد دی. دا هېواد له لسو ایالتونو څخه جوړ شوی دی او لاتر اوسه یې ګورنر جنرال چې تشریفاتي بڼه لري، د انګلستان د ملکې له خوا ورپېژندل کېږي او د انګلستان د هم ګټو (مشترک

المنافع)، هېوادونو له ډلې څخه دی. د منځنۍ امریکا اته ګوني هېوادونه د جنوبي امریکا د هېوادونو په ګډون د لاتیني امریکا په نوم یادېږي چې ډېر مهم ګډ خصوصیات یې لاتیني ژبه ده. په دغو زیاترو هېوادونو کې رسمي ژبه اسپانیوي او په برازیل کې پرتګالي ده.

ډېر لوی هېواد یې برازیل دی چې پراخوالی یې ۸،۵٤۷،٤۰٤ کیلومتره مربع او پلازمېنه یې د برازیلیا ښار دی او ډېر کوچنی هېواد یې ترینیداد او توباګو دی، د ارجنټاین هېواد کې مهم ښار یې بونس ایرس دی چې د امریکا د پاریس په نوم هم شهرت لري. د جنوبي امریکا د نفوسو ډک هېواد بیا هم برازیل دی چې ۱۸٤،۷ میلیونه تنه نفوس لري او لږ نفوس لرونکی هېواد یې فالکلند تر استعمار لاندې هېواد دی چې ۲۰۰۰ تنه نفوس لري. د امریکا د لویې وچې شپږ هېوادونه فدرالي، ۱۹ یې ولسواکه (جمهوري) او لس نور یې د انګلستان پخوانۍ مستعمرې دي چې اوس یې خپلواکي په رسمیت پېژندل شوې ده، خو لاتر اوسه یې ګورنر جنرال د انګلستان د ملکې له خوا ټاکل کېږي او د انګلستان له هم ګټو هېوادونو څخه ګڼل کېږي.

### د ټولګي فعالیت

زده کوونکي دې په ډلو ووېشل شي، د پخوانیو معلوماتو په پام کې نیولو سره دې د امریکایي هېوادونو د حکومتي جوړښت په هکله په خپل منځ کې بحث وکړي او پایلې دې ټولګیوالو ته وړاندې کړي.

### پوښتنې

۱ـ د امریکا د لویې وچې د سیاسي وېش نقشې ته په پاملرنې سره، لاندېنیو پوښتنو ته ځواب ورکړئ:

الف ـ د شمالي امریکا د دوو هېوادونو نومونه ووایئ

ب ـ د منځنۍ امریکا د یوه هېواد نوم ووایاست

ج ـ د جنوبي امریکا د دریو هېوادونو نومونه ووایاست

۲ـ د جنوبي امریکا هېوادونه کومه ګډه فرهنګي وجه لري

۳ـ د امریکا د متحدو ایالتونو (اتازوني) هېواد له څو ایالتونو څخه جوړ او د حکومت ډول یې څرنګه دی؟

### کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د امریکا د لویې وچې د یوه هېواد په هکله معلومات راټول او د جغرافیې په راتلونکي ساعت کې دې وړاندې کړي.

# د امريکا د لويې وچې د بشري جغرافيې په هکله څه پوهېږئ؟



د راتلونکي مخ نقشې ته وګورئ، د امريکا په لويه وچه کې د نژادونو وېش راښيي.
په امريکا کې کوم نژادونه استوګنه لري؟

## الف ـ نژاد او ژبې

د امريکا د لويې وچې خلک له ډول، ډول نژادونو او څانګو څخه جوړ شوي چې ډېر غوره يې عبارت دي له:

### ۱ـ بوميان يا سره پوستکي

د امريکا قديمي او اصلي اوسېدونکي دي چې په متحده ايالاتو او کاناډا کې اوسېږي او هغوی ته هنديان Indian هم وايي. د امريکا له کشفولو وروسته دې لويې وچې ته د سپين پوستکو اروپايانو په راتګ سره چې د سره پوستکو د ځمکو د لاندې کولو په لټه کې وو، له امله يې د بوميانو او اروپايانو ترمنځ ډېرې جګړې وشوې چې د هغو له امله نن ډېر لږ سره پوستکي پاتې دي. د دې خلکو کار کرنه او د ژويو ښکار و او د ونو له ريښو څخه يې هم خواړه برابرول. سره پوستکي د ژېړ پوستکو له نژاد څخه هم ګڼل کېږي چې ډېر پخوا يې د آسيا له لويې وچې څخه د بيرنګ د آبنا له لارې د امريکا لويې وچې ته مهاجرت کړی دی.

## ۲_ سپين پوستکي

له شپاړسمې میلادي پېړۍ څخه وروسته اروپايي سپين پوستکي مهاجرين ورو ورو امريکا ته راغلل، هلته استوګن شول او ورځ په ورځ يې شمېر زيات شو. نن د امريکا د لويې وچې زيات وګړي دوه رګه دي چې د مختلفو نژادونو د ګډون په نتيجه کې رامنځ ته شوې دي.

## ۳_ تور پوستکي

امريکايي تور پوستکي په واقعيت کې د افريقايي غلامانو او مريانو زامن او لمسيان دي چې د استعمار په دوران کې د اروپايي سپين پوستکو په واسطه په کانونو او کروندو کې د کار لپاره په زوره دې لويې وچې ته راوړل شوي دي. نن ورځ زيات شمېر تورپوستکي په شمالي، مرکزي او جنوبي امريکا کې ژوند کوي.

د امريکا په متحده ايالتونو کې تورپوستکي د دې هېواد په جنوب ختيځ او همدارنګه په لويو ښارونو، لکه شيکاګو او نيويارك کې اوسېږي او د ژوند شرايط يې د سپين پوستکو په پرتله له اقتصادي او اجتماعي پلوه نامناسب دي.

آيا پوهېږئ چې د امريکا په لويه وچه کې دوه فرهنګه او مروجې ژبې کومې دي؟

د امريکا په لويه وچه کې نژادونه




### الف ـ شمالي امريکا

په شمالي امريکا کې، يعنې په متحده ايالاتو کې انګليسانو د اوولسمې میلادي پېړۍ په لومړيو اوبه کاناډا کې د اتلسمې پيړۍ په وروستيو کې يو ډول انګليسي فرهنګ رامنځ ته کړ چې لاتر اوسه شته. د کاناډا وګړي په انګليسي او فرانسوي او د متحده ايالاتو وګړي په انګليسي ژبه خبرې کوي.

## ب ـ لاتینه امریکا

منځنۍ او جنوبي امریکا په ګډه د لاتینې امریکا په نوم شهرت لري. د دې سیمې نوم او د هغو د ژوند کړه وړه د لاتینې اروپا، یعنې د اسپانیې او پرتګال د فرهنګ استازیتوب کوي چې اسپانوي ژبه د دې سیمې له ۲۰ جمهوریتونو څخه په ۱۸ جمهوریتونو کې دود ده، د برازیل خلک په پرتګالي او د هایتي خلک په فرانسوي ژبو خبرې کوي.



د تور پوستکي څېره



د سپین پوستکي څېره

د سرو پوټکو خلکو يو تصوير



## د ټولګي فعاليت

زده کوونکي دې په ډلو کې په لاندې مطلب بحث او خبرې وکړي:

ـ لاتينه امريکا د امريکا د لويې وچې کومې برخې ته ويل کېږي او ولې؟

ـ د تور پوستکو اصلي منشا چې نن ورځ په امريکا کې اوسېږي، له کوم ځای څخه پيلېږي؟

## پوښتنې

سم ځواب غوره کړئ:

۱ـ د انګلوساکسون فرهنګ په کوم يوه لاندينۍ هېواد کې شته؟

الف: کاناډا ب: برازيل

ج: ارجنټاين د: مکسيکو

لاندې جمله بشپړه کړئ:

۲ - په جنوبي امريکا کې ............ فرهنګ رواج لري.

لنډ ځواب ورکړئ:

۳- آيا د امريکا د متحده ايالاتو توربوستکي مناسب اقتصادي او اجتماعي شرايط لري؟

# د امريکا د نفوسو او مذهب په هکله څه پوهيږئ؟



د امريکا په لويې وچې کې د نفوسو د جغرافيايي وېش نقشه

د امريکا د لويې وچې د نفوسو ډک ښارونه کوم دي؟

د امريکا د لويې وچې د نفوسو د جغرافيايي وېش نقشې ته ځير شئ چې په امريکا کې د نفوسو مېشته کېدنه ښيي.

نن ورځ د امريکا د نفوسو زياته برخه د دوو لويو وچو، يعنې داروپا او افريقا مهاجرين چې په لويو ښارونو کې اوسېږي، رانغاړي. د دې لويې وچې له نفوسو څخه ډکې سيمې شمالي او منځنۍ امريکا ده چې په ۲۰۰۰ م. کال کې يې له ٤٨٠ ميليونو تنو څخه زيات وګړي درلودل. په جنوبي امريکا کې له ٣٤٦ ميليون تنو څخه زيات وګړي اوسېدل. د امريکا د لويې وچې ټول نفوس ٨٢٧ ميليون تنو ته رسېږي. په شمالي او منځنۍ امريکا کې له نفوسو څخه ډک ښار د نيويارک بندر دی، چې نفوس يې په ۲۰۰۵ م کال کې ۱۸,۵ ميليونو تنو ته رسېده. په جنوبي امريکا کې بونس ايرس د ارجنټاين د هېواد پلازمېنه له نفوسو څخه له ډکو ښارونو څخه شمېرل کېږي چې په ۲۰۰۵ م کال کې

د نيويارک يو انځور



يې ۱۳,۳ میلیون تنه نفوس درلوده. همدارنګه په برازیل کې د ساو پائولو د ښار د وګړو شمېر په ۲۰۰۵ م کال کې ۱۸,۳ میلیونو تنو ته رسېده. د یادولو وړ ده چې د نفوسو وده په لاتینه امریکا کې د شمالي امریکا په پرتله زیاته ده. د شمالي امریکا وګړي له مکسیکو پرته زیاتره د پروتستانت د مذهب پیروان دي او د امریکا د لویې وچې نور اوسېدونکي کاتولیک مذهبه دي، چې د جنوبي اروپا میراث دي. د کاتولیک مذهب پیروان په لاتینه امریکا کې استوګن دي او د نورو دینونو پیروان، لکه مسلمانان او یهودیان هم د امریکا په لویه وچه کې اوسېږي.

د ساو پائولو د ښار انځور



## د ټولګي فعالیت

د امریکا د نفوسو د جغرافیایي وېش نقشې ته په پاملرنې، د دې لویې وچې له نفوسو څخه ډک ښارونه د لیکنې پرته نقشه کې نښه کړئ.

## پوښتنې

۱ـ د امریکا په کومو ښارونو کې زیات تور پوستکي اوسېږي؟
۲ـ د نفوسو وده په شمالي امریکا کې زیاته ده که په جنوبي او مرکزي امریکا کې؟
۳ـ د پروتستانت مذهب زیاتره د دې لویې وچې په کومه برخه کې رواج لري؟ نوم یې واخلئ.

# د امریکا د اقتصادي جغرافیې په هکله څه پوهیږئ؟



کوم عوامل د شمالي امریکا د اقتصادي پرمختګ سبب شوي دي؟

## شمالي امریکا

په اوسنیو شرایطو کې د شمالي امریکا دوه هېوادونه (متحده ایالات او کاناډا) په مختلفو دلایلو د نړۍ له ډېرو پرمختللو هېوادونو څخه شمېرل کېږي، د مثال په توګه:

ـ شمالي امریکا تر ځمکې لاندې ډېر کانونه، طبیعي سرشاره زېرمې، پراخې ځمکې، له اوبو څخه ډک سیندونه او ډول، ډول اقلیم لري.

ـ د امریکا د لوېې وچې له کشف څخه وروسته اروپایانو دې وچې ته مهاجرت کړی دی، هغوی خپلې پانګې هم له ځان سره راوړې وې، دې مهاجرینو خپل مهارتونه او استعدادونه په کار واچول او د څو پېړیو په اوږدو کې یې نوی تمدن رامنځ ته کړ.

ـ د شمالي امریکا په اقتصادي پراختیا کې نورو عواملو هم اغېزه درلوده مثلاً په دویمې نړیوالې جګړې کې د زیاترو اروپایي هېوادونو صنایع ړنګ شوې، خو متحده ایالتونه د جګړې له سیمې څخه د لرې والي په سبب زیانمن نه شو او ویې کولای شول چې له خپلو سیالانو څخه د مخه شي.

ـ شمالي امریکا د زیاترو هېوادونو د پوهانو او متخصصانو په جذبولو سره یې هم وکولای شو چې پر مختللی اقتصاد ولري.

د شمالي امریکا نقشه

د شمالي قطبي دایره
شمالي ځمکې
د هودسن خلیج
شمالي داکوټای
جنوبي داکوټای
پنځه ګوني خلیجونه
د اطلس سمندر
لوېدیځه ویرجینیا
جنوبي کارولینای
آرام سمندر
د مکسیکو خلیج

د شمالي امریکا (د امریکا د متحدو ایالتونو او کاناډا) اقتصادي انځوریزه نقشه

لارښود

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| سره زر | اومه نفت | غنم | کانونه | پنبه | تنباکو |
| کارخانه | د سمندرونو له تل څخه د نفتو را یستنه | جوار | د ورو سکاره | د شیدو غواګانې | کب نیونه |
| خوګ | لرګی | انګور | د غوښې غوايي | پسونه | مرکبات |

## کرنه او مالداري

شمالي امریکا طبیعي سرشاره او پراخه منابع لري چې همدا لامل په دې سیمه کې د کرنې او مالدارۍ د پرمختګ سبب شوی دی. په حاصل خېزو ځمکو کې یې په زیاته اندازه غنم او جوار کرل کېږي. کرنیز فعالیتونه له علمي لارو چارو څخه په ګټې اخیستنې سره په ښه توګه سرته رسېږي. مالداري د امریکا په مختلفو سیمو کې له هغې جملې په متحده ایالاتو او کاناډا کې ځانګړې ارزښت لري، په دې هېوادونو کې د غویانو، پسونو او وزو د لویو ګلو او آسونو روزنه کېږي.

## کانونه او صنایع

د شمالي امریکا په ټوله لویه وچه کې د نفتو ځاګانې او د اوسپنې او ډبرو سکرو کانونه پیدا کېږي. همدارنګه د دې لویې وچې نور غوره کانونه سره زر، سپین زر، مس، نیکل او داسې نور دي.



د امریکې متحده ایالاتو د صنعتي تولیداتو کارخانې په لویو ښارونو، لکه نیویارك او د امریکا د پنځه گونو جهیلونو په شاوخوا کې جوړې شوې دي.

د شمالي امریکا د یادولو وړ صنایع د فلزاتو د ویلې کولو، درندو صنایعو، د پولادو برابرولو، کرنیزو ماشینونو او لارو جوړولو، د وسلې تولیدولو، موټر جوړولو، بېړۍ جوړولو، الوتکو جوړولو او بالاخره کیمیاوي صنایعو، د نفتو د چاڼولو له صنایعو او نورو څخه عبارت دي.

### د ټولگي فعالیت

زده کوونکي دې په ډلو ووېشل شي او هر ډله دې د لاندې جدول په پام کې نیولو سره، هغه طبیعي او بشري عوامل چې د شمالي امریکا د پرمختگ سبب شوي، په دوو ورکړل شوو ستونونو کې واضح کړي.

| طبیعي عوامل | بشري عوامل |
|---|---|
| حاصل خېزه پراخه ځمکې | جگړې څخه لرې والی |
| ........................................ | ........................................ |
| ........................................ | ........................................ |
| ........................................ | ........................................ |

### پوښتنې

۱_ د شمالي امریکا د څو غوره کرنیزو پیدا وارو نومونه واخلئ
۲_ د امریکا متحده ایالاتو مهم صنایع کوم دي؟ بیان یې کړئ
۳_ د شمالي امریکا د غوره کانونو نومونه واخلئ
٤_ د شمالي امریکا د صنایعو په هکله څه پوهېږئ، معلومات ورکړئ؟

### کورنۍ دنده

د شمالي امریکا لیکنې څخه پرته (سپینې) نقشې کې د شمالي امریکا د صنعتي ښارونو ځایونه مشخص کړئ او د جغرافیې په راتلونکي ساعت کې یې ټولگیوالو ته وښیئ.

# لاتينه امريکا



کرونده

د لاتينې امريکا اقتصاد پر کومو بنسټونو ولاړ دی؟

د لاتينې امريکا هېوادونه د متحده ايالاتو او کاناډا په څېر پرمختللي نه دي، بلکې د هغو اقتصاد زياتره په کرنيزو محصولاتو او د کاني موادو په را ايستنې ولاړ دی.

د ککاو د کښت انځور



## کرنه

د شلمې پېړۍ په لومړيو کې چې د کرنې په برخه کې کوم بدلونونه رامنځ ته شوي، له امله يې لاتينې امريکا وکولی شو چې د نړۍ په کرنيز اقتصاد کې مهم مقام خپل کړي. نن ورځ کولی شو د جنوبي امريکا د هېوادونو په غوره کرنيزو محصولاتو کې د پنبې، ګنيو، ککاو، قهوې، کېلې او ربړ نومونه واخلو. سربېره پردې د دې سيمې په ځينو هېوادونو کې غلې دانې په ځانګړې ډول غنم او جوار هم په ډېره اندازه کرل کېږي. لکه ارجنټاين چې د غنمو او جوارو مهم

تولیدوونکی هېواد او برازیل د نړۍ د قهوې مهم صادروونکی هېواد دی. همدارنګه د امازون د ځنګلونو اومه (خام) ربړ د دې لوېې وچې غوره شتمني ګڼل کېږي. په منځنۍ امریکا او د کارابین په ټاپوګانو کې کیله، قهوه، ککاو، ګني، ډول، ډول مرکبات، اناناس او همدارنګه سربېره پر هغو په ټوله جنوبي امریکا کې چغندر، قند، کتان او په ځنګلي سیمو کې له ځنګلونو څخه د ګټې اخیستنې محصولات د پاملرنې وړ دي.

## مالداري

مالداري د جنوبي امریکا په مختلفو سیمو چې د هغو له جملې څخه په برازیل او ارجنټاین کې ځانګړې ارزښت لري. په دې هېوادونو کې د شنو او پراخو د ښتو د شته والي له امله د رمو ساتنه او مالداري په ځانګړي ډول د غواګانو روزنه ډېر رواج لري چې په دې وروستیو کلونو کې چې د غوښو د کنسرو او ساتنې لپاره پوره وسایل برابر شوي، نو دغه حالت د مالدارۍ د ډېرې ودې لامل شوی دی.

مالداري



## کانونه او صنایع

جنوبي امریکا د طبیعي منابعو له پلوه بډایه لویه وچه ده. په دې لویه وچه کې د نفتو، سرو زرو، سپینو زرو، مسو او اوسپنې کانونه شته دي، دا سیمه د نفتي منابعو د درلودلو له پلوه هم د پاملرنې وړ ده. یو له هغو عواملو څخه چې د هسپانویانو او پرتگالیانو پام یې د دې لویې وچې د نیولو لپاره را واړاوه، هغه د قیمتي فلزاتو، لکه سرو زرو او سپینو زرو شته والی وو چې د سپینو زرو زیاتره کانونه په مکسیکو او د بوکسیتو (د المونیمو د تولید لپاره استعمالیږي) په جامیکا کې دي.د نفتو د صنعت ډول، ډول کانونه، د فلزاتو ویلې کول او د مسو مهم کانونه هم د چیلي په هېواد کې د یادونې وړ دي. په جنوبي امریکا کې د صنایعو پراختیا په لومړنیو حالاتو کې ده.

د نفتو چڼ ځای



د کارخانو یو تصویر



## د ټولګي فعالیت

زده کوونکي دې په ډلو وویشل شي، هره ډله دې د شمالي امریکا او جنوبي امریکا اقتصاد د کرنې، مالدارۍ، کانونو او صنایعو له پلوه سره پرتله کړي او پایله دې ټولګیوالو ته وړاندې کړي.

## پوښتنې

۱_ د جنوبي امریکا اقتصاد زیاتره په کومو شیانو ولاړ دی؟

۲_ د جنوبي امریکا ډېر مهم صادراتي محصولات کوم دي؟

۳_ د لاتیني امریکا په هېوادونو کې د مالدارۍ او د رمو ساتنو د پراختیا دلایل ولیکئ.

٤_ د جنوبي امریکا د مهمو کانونو نومونه واخلئ.

## کورنۍ دنده

لاتیني امریکې ته د هسپانویانو او پرتګالیانو د مهاجرت په هکله یو مطلب د ښوونځي له کتابتون او یا نورو سرچینو څخه په ګټې اخیستنې سره په څو کرښو کې ولیکئ او د جغرافیې د لوست په راتلونکي ساعت کې یې ټولګیوالو ته وړاندې کړئ.

# د شمالي امریکا د مواصلاتي جغرافيې په هکله څه پوهېږئ؟




د شمالي امریکا مهمې لويې لارې

ستاسې له نظره، د شمالي امریکا د مواصلاتي لارو اهمیت په څه کې دی؟

مواصلاتي جغرافيه د سوداګريزو مهمو بندرونو، ښارونو او سيمو ترمنځ د اړيکو له مطالعې څخه عبارت ده چې په دغه تګ لوري بانديې د سوداګرۍ مالونه (واردات او صادرات) او د مسافرينو تګ او راتګ کېږي او مختلف ډولونه لري.

د امریکا مواصلاتي لارې تر دوو بېلو عنوانونو لاندې مطالعه کولی شو:

## شمالي امریکا

### ۱_ ځمکني مواصلات

شمالي امریکا د اوسپنو او لويو لارو ډېرې ګڼې کرښې لري چې ټول ښارونه، د کانونو د راایستنې مرکزونه، صنعتي او لګښتي مرکزونه او د هېوادونو بندرونه يې سره نښلولي دي، يعنې د شمالي امریکا د هېوادونو د اوسپنو کرښې او لويې لارې په خپلو منځونو اوهم د منځنۍ امریکا د بحر الکاهل له غاړې هېوادونو سره نښتي دي، چې له هغو څخه په ګټه اخيستنې سره له ټولو هېوادونو سره سوداګريزې او سفري اړيکې ټينګولی شي.



د لوېږي لارې تصوير

## ۲_ د اوبو مواصلات

د ارام او اتلانتيک د سمندرونو ترمنځ د شمالي امريکا جغرافيايي مناسب موقعيت او ساحلي مناسبه وتلې او ننوتلې برخې د دې سبب شوې، ترڅو بندرونه، سوداګري او د بېړۍ چلونې صنعت په دې سيمو کې پرمختګ وکړي او د نړۍ له سلو څخه زيات هېوادونو سره سوداګري وکړي. همدارنګه د سيندونو د اوبو له لارو په ګټې اخيستنې سره کولی شي د هېواد په دننه او هم د هغو له لارې د اوبو له نړيوالو لارو سره اړيکې پيدا کړي.

## ج- هوايي مواصلات

له دې ترانسپورت څخه زياتره په لېرې واټنونو د مسافرينو او هغو مالونو د وړنې لپاره چې درانده نه وي او ارزښت يې ډېر وي، ګټه اخيستل کېږي.

د هوايي ډګر تصوير



د امريکا د متحده ايالاتو او کاناډا د هېوادونو لويې ترانسپورتي کمپنۍ د ډېرو لويو او وړو الوتکو په لرلو سره د هېواد په دننه او بهر کې په ترانسپورتي برخه کې فعاليت کوي.

### دـ د پایپ لین په واسطه وړل

د دې وسیلې په واسطه زیاتره مایعات له ضایعاتو پرته په ډېرې چټکۍ سره د لګښت مرکزونو ته وړل کېږي. دې وسیلې زیاتره د شمالي امریکا په هېوادونو کې پراختیا موندلې او د نفتو، ګازو او اوبو د وړلو لپاره ورځخه ګټه اخیستل کېږي. د تکزاس ـ نیویارک دګاز پایپ لین د امریکا د متحده ایالاتو ډېر اوږد او مهم پایپ لین دی. په کاناډا کې هم د هېواد د لوېدیځ، یعنې د البرتا د ایالت او د هغه له شاوخوا سیمو ځخه نفت او ګاز د پایپ لینونو په واسطه د لګښت مرکزونو ته وړل کېږي.

د طبیعي ګاز پایپ لین





## د ټولګي فعالیت

زده کوونکي دې په دوه کسیزه ډلو کې تنظیم شي او له ورکړل شوي نقشې څخه په ګټې اخیستنې سره دې له یو بل سره مشوره وکړي چې د امریکا په متحده ایالاتو کې د شیکاګو سوداګریز صنعتي ښار (د مشیګان د جهیل په جنوب لوېدیځه غاړه کې) د اوسپنو د کرښو او لویو لارو په وسیله له کومو بندرونو او ګاونډیو هېوادونو سره نښلول شوی دی او د خپل فعالیت پایلې دې ټولګیوالو ته ووایي.



## پوښتنې

۱ـ مواصلاتي جغرافیه تعریف کړئ.
۲ـ د متحده ایالتونو د اوسپنې کرښې د کومو هېوادونو د اوسپنو له کرښو سره نښلول شوې دي؟
۳ـ د شمالي امریکا جغرافیایي موقعیت د دریو سمندرونو ترمنځ د کوم ډول ترانسپورت د پرمختیا سبب شوی دی؟
٤ـ د شمالي امریکا کوم لوی سیندونه د بېړی چلولو وړ دي؟
٥ـ له هوایي ترانسپورت څخه زیاتره د څه لپاره کار اخیستل کېږي؟
٦ـ د پایپ لین د ترانسپورت ارزښت توضیح کړئ.



## کورنۍ دنده

له ورکړل شوې نقشې څخه په ګټې اخیستنې سره، که وغواړو د امریکې متحده ایالاتو د الاسکا له ایالت څخه د لویو لارو په وسیله د پانامې هېواد ته سفر وکړو، له کومو هېوادونو څخه باید تېرشو. په دې هکله خپل معلومات ولیکئ.

# جنوبي امريکا




د جنوبي امريکا مهمې لويې لارې

ولې د جنوبي امريکا په لويه وچه کې ځمکني ترانسپورت ښه وده او پرمختګ نه دی کړی؟

ـ په دې لويه وچه کې طبيعي عوامل د ارتباطي لارو خنډ ګرځي. د انديز د غرونو لړۍ له يوې خوا او د امازون پراخو ځنګلونو له بلې خوا د ګډوګډو لرونکو هېوادونو د ترانسپورتي لارو پراختيا ستونزمنه کړې ده. د جنوبي امريکا هېوادونه د ځمکنيو لارو له اړخه بې وزلي دي.

د ځمکنۍ لارې تصوير



## الف ـ ځمکني مواصلات

په جنوبي امريکا کې د اوسپنو کرښې زياتره په دوو ګڼ مېشتو سيمو کې، يعنې د برازيل د قهوې په توليدي سيمو د ريودو ژنيرو په شاوخوا کې او د پامپاس په حاصل خېزه سيمو د بونس ايرس په شاوخوا کې پراختيا موندلې ده.


سړکونه او لويې لارې

د جنوبي امريکا د اوسپنو مهمې کرښې په لاندې ډول دي:

۱ـ د ارجنټاين او چيلي د هېوادونو ترمنځ د اوسپنو سراسري ليکه.

۲ـ د ارجنټاين له هېواد څخه د بوليويا هېواد ته اوسپني ليکه.

۳ـ له ارجنټاين څخه د برازيل هېواد ته د ختيځ ساحل د اوسپني لار.

٤ـ له بوليويا څخه د چيلي هېواد ته د اوسپنې کرښه.

د پان امريکن په نامه لويې لارې چې د جنوبي امريکا د زياترو هېوادونو پلازمېنې يې سره نښلولې دي، د جنوبي امريکا له مهمو لويو لارو څخه شمېرل کېږي.

## ب ـ د اوبو مواصلات

د جنوبي امريکا هېوادونه د اوبو د لارو له پلوه شتمن دي، ځکه زياتره سيندونه يې په ډېر اوږده واټن د بېړيو چلولو وړ دي. د بېلگې په توگه، د امازون سيند د ٤٠٠٠ کيلومترو په واټن د بېړيو چلولو وړ دی. له بلې خوا د جنوبي امريکا ښه جغرافيوي موقعيت د آرام او اتلانتيک د سمندرونو ترمنځ د سمندري ترانسپورت د پراختيا سبب شوی دی. د پانامې کانال چې د اتلانتيک او آرام سمندرونه سره نښلوي، اوږدوالی يې ۸۲ کيلومتره دی چې د ځانگړې ستراتيژيکي او اقتصادي ارزښت لرونکی دی.

په جنوبي امريکا کې د يوه بندر تصوير



## ج_ هوايي مواصلات

د ځمکنيو لارو د پراختيا محدوديت د دې سبب شوی چې د جنوبي امريکا ډېر هېوادونه هوايي لارو ته زياته پاملرنه وکړي. پر نړيوالو هوايي کرښو سربېره چې ورڅخه ګټه اخيستل کېږي، د ننني اړيکو زياته برخه هم په ځانګړي ډول د برازيل او ارجنټاين په هېوادونو کې چې پراخوالی يې ډېر زيات دی، د هوا له لارې سرته رسېږي.

د هوايي ډګر يو تصوير



### د ټولګي فعاليت

زده کوونکي دې په پنځه کسيزه ډلو کې تنظيم شي او هره ډله دې د جنوبي امريکا د ځمکني ترانسپورت د ستونزو په هکله په خپل منځ کې بحث وکړي او د خپل بحث پايلې دې ټولګيوالو ته وړاندې کړي.

### پوښتنې

۱_ هغه طبيعي عوامل چې د جنوبي امريکا د ځمکنيو لارو د پراختيا په مخ کې خنډ ګرځېدلي، وواياست؟

۲_ د جنوبي امريکا د اوسپنو ليکې زياتره په کومو سيمو کې جوړې شوې دي؟

۳_ ولې په جنوبي امريکا کې د اوبو ترانسپورت د ځمکني ترانسپورت په پرتله پرمخ تللی دی؟

٤_ په جنوبي امريکا کې د هوايي ترانسپورت د ډېرې پرمختيا علتونه کوم دي؟

### کورنۍ دنده

د جنوبي امريکا ترانسپورتي نقشه په غور سره مطالعه کړئ او وواياست، که چيرې وغواړو د ارجنټاين له پلازمېنې بونس ايرس څخه د چيلي د هېواد پلازمېنې سانتياګو ته سفر وکړو، له کومو مواصلاتي کرښو څخه ګټه اخيستلای شو.

## د دویم څپرکي (امریکا)لنډیز

ـ امریکا یوازینی لویه وچه ده چې د شمال له قطب څخه د جنوب تر قطب پورې اوږده پرته ده.
ـ د امریکا لویه وچه په ۱٤۹۲م کال کې د کرستف کولمب په واسطه کشف شوې ده، هغه بل سړی چې دې لویې وچې ته یې سفر وکړ، امریکو سپو چې و چې د دې لویې وچې نوم (امریکا) هم د نوموړي له نوم څخه اخیستل شوی دی.
ـ د امریکا د لویې وچې غرونه په دوو برخو وېشل شوي، لکه د اپالاش لږ لوړ زاړه غرونه او د راکي او انډیز لوړ او ځوان غرونه.
ـ د شمالي امریکا ډېر لوی سیند میسي سي پي دی چې د مکسیکو په خلیج کې توییږي او د ډېرو چلولو وړ هم دی.
ـ د نړۍ د اوبو ډېر ډک سیند امازون دی چې په جنوبي امریکا کې بهیږي او د ډېرو چلولو وړ دی.
ـ د شمالي امریکا لوی جهیلونه د سوپریر، میشیګان، هورن، ایري او انتاریو پنځګوني جهیلونه دي، چې د هغو اوبه خوږې دي، د نړۍ ډېر لوړ جهیل تي تي کاکا په جنوبي امریکا کې دی.
ـ د امریکا لویه وچه د خپل جغرافیایي موقعیت په سبب د نړۍ د ډول ډول اقلیمونو او ډول ډول نباتاتو لرونکې ده.
ـ د امریکا دې لویې وچې اصلي اوسېدونکي سره پوستکي دي او د امریکا سپین پوستکي اصلاً اروپایي مهاجرین دي.
ـ د شمالي امریکا د نفوسو ډک ښار نیویارک او د جنوبي امریکا بونس ایرس دی.
ـ د امریکا سمندرګي (بحیرې) اقتصادي او ستراتیژیکي ارزښت لري.
ـ د پانامې کانال د اوبو له ګڼه ګوڼې ډکه لاره ده، چې اتلانتیک سمندر د بحر الکاهل سره نښلوي.
ـ د دې لویې وچې ښه موقعیت د دوو سمندرونو (اتلانتیک او ارام) ترمنځ له زیاتو خلیجونو د رامنځ ته کېدو سبب شوی چې لوی یې د مکسیکو خلیج دی.
ـ د امریکا په لویه وچه کې ٥۱ سیاسي واحدونه شته، چې له هغو څخه یې ۳٥ خپلواکه هېوادونه دي.
ـ د امریکا لویه وچه د دوو کلتورونو لرونکې ده چې په شمالي امریکا کې انګلوساکسون او په جنوبي امریکا کې لاتین دي.
ـ یو له هغو علتونو څخه چې شمالي امریکا د اقتصادي ودې لامل شوی، له دویمې نړیوالې جګړې څخه د هغې لیرېوالی و چې په نوموړې جګړه کې د زیاترو اروپایي هېوادونو صنایع ویجاړ شول، خو د امریکا متحده ایالات په نړۍ کې د هغو یوازیني پوره کوونکی و.
ـ د امریکا د لویې وچې جغرافیایي موقعیت چې د دوو سمندرونو اتلانتیک او الکاهل ترمنځ پروت دی، د دې سبب شوی چې د اوبو ترانسپورت په کې زیات پرمختګ وکړي. همدارنګه د مسافرینو او هغو مالونو د وړلو لپاره چې حجم یې لږ او ارزښت یې ډېر وي، له هوایي ترانسپورت څخه کار اخیستل کېږي.

څلورمه ګڼه جدول: د امریکایي هېوادونو جغرافیایي ځانګړتیاوې (د مطالعې لپاره)

| ګڼه | هېوادونه | پلازمېنه | پراخوالی په کیلو متر مربع | نفوس په ۲۰۰۲م کال کې | موقعیت |
|---|---|---|---|---|---|
| ۱ | آرجنټاین | بوئنوس آیرس | ۲۷۸۰۰۹۲ | ۳۸۹۷۱۰۰۰ | جنوبي امریکا |
| ۲ | آنتي ګوا باربودا | سنت جونز | ۴۴۲ | ۷۸۲۰۰ | منځنی امریکا |
| ۳ | اروګوای | مونته ویدئو | ۱۷۶۲۱۵ | ۳۲۶۶۰۰۰ | جنوبي امریکا |
| ۴ | اکوادور | کیټو | ۲۷۲۰۴۵ | ۱۳۴۱۹۰۰۰ | جنوبي امریکا |
| ۵ | السوادور | سان سالوادور | ۲۱۰۴۱ | ۶۹۹۱۰۰۰ | منځنی امریکا |
| ۶ | د امریکا متحده ایالتونه | واشنګټن ډي سي | ۹۳۶۳۳۶۴ | ۲۹۹۳۳۰۰۰۰ | شمالي امریکا |
| ۷ | باربادوس | بریج تاوان | ۴۳۰ | ۲۷۰۰۰۰ | منځنی امریکا |
| ۸ | بهاما | ناسائو | ۱۳۹۳۹ | ۳۲۷۰۰۰ | منځنی امریکا |
| ۹ | بلیز | بلموپان | ۲۲۹۶۵ | ۳۰۱۰۰۰ | منځنی امریکا |
| ۱۰ | بولیوی | لاپاز اوسوکر | ۱۰۹۸۵۸۱ | ۹۳۵۴۰۰ | جنوبي امریکا |
| ۱۱ | پاراګوای | اسون سیون | ۴۰۶۷۵۲ | ۵۹۹۳۰۰۰ | جنوبي امریکا |
| ۱۲ | پانامه | پانامه ستي | ۷۵۵۱۷ | ۳۱۹۱۰۰۰ | منځنی امریکا |
| ۱۳ | پیرو | لیما | ۱۲۸۵۲۱۶ | ۲۷۵۴۴۳۰۵ | جنوبي امریکا |
| ۱۴ | ترینیداداوتوباګو | پرت آو اسپاین | ۵۱۲۸ | ۱۳۰۱۰۰۰ | جنوبي امریکا |
| ۱۵ | جامایکا | کینګستون | ۱۰۹۹۱ | ۲۶۶۷۰۰۰ | منځنی امریکا |
| ۱۶ | دومنیکا | روسو | ۷۵۱ | ۶۹۵۰۰ | منځنی امریکا |
| ۱۷ | دومینکن | سانتودومینګو | ۴۸۶۷۱ | ۹۰۲۱۰۰۰ | منځنی امریکا |
| ۱۸ | سنت کیتس ورنویس | باستر | ۲۶۱ | ۴۹۱۰۰ | منځنی امریکا |
| ۱۹ | سنت لوسیا | کاسترس | ۶۱۷ | ۱۶۵۰۰۰ | منځنی امریکا |
| ۲۰ | سنت وین سنت وګرنادین | کنګز تاون | ۳۸۹ | ۹۶۸۰۰ | منځنی امریکا |
| ۲۱ | سورینام | پاراماریبو | ۱۶۳۲۶۵ | ۵۰۲۰۰۰ | جنوبي امریکا |
| ۲۲ | چیلي | سانتیاګو | ۷۵۶۶۲۶ | ۱۶۴۳۶۰۰۰ | جنوبي امریکا |
| ۲۳ | کاستاریکا | سان جوزه | ۵۱۱۰۰ | ۴۲۷۴۰۰۰ | منځنی امریکا |

| گڼه | هېوادونه | پلازمېنه | پراخوالی په کیلو متر مربع | نفوس په ۲۰۰۲م کال کې | موقعیت |
|---|---|---|---|---|---|
| ۲۴ | کاناډا | اوتاوا | ۹۹۷۰۶۱۰ | ۳۲۵۴۷۰۰۰ | شمالي امریکا |
| ۲۵ | کلمبیا | بوگوتا | ۱۱۴۱۷۴۸ | ۴۳۵۹۳۰۰۰ | جنوبي امریکا |
| ۲۶ | کیوبا | هاوانا | ۱۱۰۸۶۱ | ۱۱۲۹۴۰۰۰ | منځنۍ امریکا |
| ۲۷ | گرینادا | سنت جورجز | ۳۴۴ | ۱۰۷۰۰۰ | منځنۍ امریکا |
| ۲۸ | گواتیمالا | گواتیمالاسټي | ۱۰۸۸۸۹ | ۱۳۰۱۹۰۰۰ | منځنۍ امریکا |
| ۲۶ | گویان | جورج تاون | ۲۱۴۹۶۹ | ۷۵۶۰۰۰ | جنوبي امریکا |
| ۳۰ | مکسیکو | مکسیکو سټي | ۱۹۵۸۲۰۱ | ۱۰۴۰۳۸۰۰۰ | منځنۍ امریکا |
| ۳۱ | نیکاراگوا | ماناگوا | ۱۳۰۷۰۰ | ۵۲۳۳۰۰۰ | منځنۍ امریکا |
| ۳۲ | ونیزویلا | کاراکاس | ۹۱۲۰۵۰ | ۲۷۲۱۶۰۰۰ | جنوبي امریکا |
| ۳۳ | هایټي | پورتوپرنس | ۲۷۷۵۰ | ۸۸۰۸۰۰۰ | منځنۍ امریکا |
| ۳۴ | هاندوراس | تیگوسیگالپا | ۱۱۲۴۹۲ | ۷۳۲۷۰۰۰ | منځنۍ امریکا |
| ۳۵ | برازیل | برازیلیا | ۸۵۴۷۴۰۴ | ۱۸۶۷۷۱۰۰۰ | جنوبي امریکا |

## جغرافیايي اصطلاحات

الف:

**آبنا**: د اوبو نری طبیعي بهیر دی چې دوه لویې اوبه (سمندر یا سمندرگي) سره نښلوي، لکه د جبل الطارق ابنا.

**اتازوني**: فرانسویانو د امریکا د متحده ایالاتو هېواد د اتازوني په نوم یاد کړی دی.

**استعمار**: په نننۍ اصطلاح د ابادی په نوم د کمزورو هېوادونو په چارو کې د ځواکمنو هېوادونو لاسوهنې ته ویل کېږي.

**اوریشیا**

دا اصطلاح د اسیا او اروپا له دوو کلمو څخه اخیستل شوې ده او دواړه لویې وچې تر یو عنوان لاندې د اوریشیا په نوم یادېږي، ځکه دواړه سره نښتي دي.

**اورغورځوني** (اتشفشان)

د ځمکې په قشر کې د مگما Magma د ویلې شوو موادو د راوتلو خولې دې چې په زیات فشار خپله لاره د ځمکې د سطحې په لور پرانیزي او د لاوا ویلې شوي مواد ورڅخه راوځي.

**پامپاس**:د جنوبي امریکا د ډېرو او لوړو وښو لرونکو ځلگو ته ویل کېږي چې د جنوبي امریکا په منځنیو عرض البلدونو کې د اتلانتیک له سمندر څخه د اندیز تر غرونو پورې غځېدلي دي او د برازیل له جنوب څخه تر اوروگوای او ارجنټاین پورې پرتې دي. اوس د دې ځلگو پراخه سیمې د غنمو، جوارو، وریجو او کتان کروندو نیولې دي او مالدارۍ هلته ډېره پراختیا موندلې ده. د پامپاس اصطلاح د جنوبي امریکا د نورو ځلگو لپاره هم استعمالیږي.

**تروپیک** (استوایي اقلیم)

هغه اقلیم چې د استوا کرښې د شمالي عرض البلد د پنځو درجو او د جنوبي عرض البلد د لسو درجو (د سمندرونو

د شته والي له امله ) شته دی چې له امله يې د کال په اوږدو کې يو شانته زياته تودوخه، د ځانګړو فصلونو نشتوالی او ډېر باران رامنځ ته کېږي. لمر يې د کال په اوږدو کې تل عمودې او يا عمود ته نږدې لګېږي. همېشنی لنده بل او ګڼ ځنګلونه د دې اقليم ځانګړتياوې دي.

**تکتونيک**:د ځمکې دننه ټولو قواوو ته ويل کېږي، چې د ځمکې په قشر کې د طبيعي پديدو د منځته راتلو، لکه اور غورځونې، زلزلې اونورو د منځته راتلو سبب کېږي.

### تمدن

ښاري کېدل، له ښاري دودونو او دستورونو سره عادت کول او خپل د هوساينې او پرمختګ د وسايلو برابرولو ته وايي.

### توريست

له تاريخي پلوه د فرانسوي اشرافو بچيانو ته چې د زده کړې او د ژوندانه د تجربو د حاصلولو لپاره به په سفر تلل، توريست ويل کېده. د توريست اصطلاح له ۱۹ م پېړۍ راهيسې رواج شوې او وروسته دا اصطلاح په فرانسه کې د هغه چا لپاره وکارول شوه چې د تفريح او د خپل وزګار وخت د تېرېدو لپاره به يې په فرانسه کې سفر کاوه. د غه ډول سفرونو ته وروسته د ګرځندوی يا توريزم اصطلاح استعمال شوه.

**تندرا**: روسي کلمه ده چې د روسيې د شمال له ونو پرته د ځانګړو نباتاتو سيمو ته ويل کېږي چې ژمی يې سوړ او اوږد دی، اوړی يې ډېر لنډ او د تودوخې درجه يې له لسو درجو ښخه کښته وي، په همدې لنډه موده کې د ځمکې د مخ کنګلونه ويلې کېږي او نباتات، لکه خزه اوګلسنګ وده کوي.

### ټاپو وزمه (جزيره نما)

د وچې يوه برخه ده چې په اوبو کې ننوتلې وي او دريو خواوو ته يې اوبه وي.

**ټاپو (جزيره)**: د وچې يوه ټوټه چې د سمندر، سمندرګيو، جهيلونو او سيندونو په منځ کې پرته وي.

**جمهوري**: هغه حکومت چې په هغه کې د دولت مشر د خلکو له خوا د يوې ټاکلې مودې لپاره غوره شي.

### جيولوژيکي لومړۍ دوره

دغې دورې له۲۷۵ ښخه تر ۲۳۰ ميليونو کلونو مخکې دوام درلود چې په هغې کې د آسيا او اروپا لوی غرونه او د شمالي امريکا د اپلاش غرونه تشکيل شوي دي.

**جهيل**: پراخو ولاړو اوبو ته وايي چې د وچې په واسطه په طبيعي توګه را چاپېره شوې وي، يعنې څلورو خواوو ته يې وچه وي.

**څوکه (قله)**:د غره ډېرې لوړې نقطې ته څوکه وايي، لکه د بابا د غره لوړه څوکه چې شاه فولادي ده.

**څپې**: د سمندرونو يا سمندرګيو د اوبو يوه برخه چې د بادونو د لګېدو په سبب په حرکت راځي او د سواحلو خواته پرمخ ځي، د څپې لوړې برخې ته اوج او ټيټې برخې ته يې نشيب وايي.

### ځوان غرونه

هغه غرونه چې د جيولوجی په دريمه دوره کې منځته راغلي دي. دا غرونه لوړ، غاښي غاښی، زياتې څوکې، تېرې څوکې او ژورې درې لري، لکه په افغانستان کې د هندوکش غرونه، په امريکا کې د راکي او انديز غرونه او په اروپا کې د الپ د غرونو لړۍ.

### ځروبی(ابشار)

له لوړو ښخه کښته د اوبو راتوېېدلو ته وايي چې د سيندونو په بهير کې منځته راځي، لکه د ونزويلا په هېواد کې د انجيل ځروبی.

**خليج**: په وچه کې د ژورو پراخو اوبو ننوتلو ښخه عبارت دی، چې له دريو خواوو په وچې او له يوې خوا په اوبو پورې نښتی وي.

**د سيند حوزه**:هغه سيمه چې هلته اصلي سيند له خپلو ټولو مرستيالانو سره بهېږي.

**زلزله**: د ځمکې د قشر (پوټکی) ناڅاپي احساسوونکې او چټکه لړزه ده چې د راټولې شوې انرژۍ د ازادېدو او د مګما د قوي فعالیتونو اویا د ځمکې لاندې طبقاتو د نورو عواملو له امله رامنځ ته او کېدای شي د ځمکې پرمخ د زیاتو بدلونونو او نورو مالي او ځاني ډېرو تاوانونو سبب شي.

**زاړه غرونه**

هغه غرونه چې د پالیوزویک په دوره کې منځته راغلي، لږ لوړوالی، ګنبځي بڼه، لږې څوکې ژورې درې لري، لکه په شمالي امریکا کې د اپلاش غرونه.

**سیند**: د اوبو بهېدلو ته چې په طبیعي توګه ټول کال یا د کال په یوه موده کې په یوه لوري روانې وي، سیند ویل کېږي. سیندونه معمولاً د سمندرګیو، سمندرونو، جهیلونو، یا تلاقونو یا نورو سیندونو په لور بهېږي. هغه تګ لوري ته چې سیند بهېږي، د سیند بستر وایي.

**سمندري بندر**: د سمندر پر غاړه ښار دی چې بېړۍ په کې لنګر اچوي او د سوداګریزو مالونو وړل او راوړل په کې ترسره کېږي.

**سمندري بهیر**

د سمندر د سطحې د اوبو سورور (عریض) بهیر دی چې په دوه غوره برخو، تودو او سړو اوبو وېشل کېږي، د یو بهیر لپاره د سړو او تودو اوبو د بهیر اصطلاح استعمال د شاوخوا د اوبو د حرارت په پرتله دی. لکه د ګلف ستریم او کوروشیو د تودو اوبو بهیر او د هامبولت (پیرو)، لابرادور او منګویلا د سړو اوبو بهیر.

**ساحل**

د سیند د اوبو د سطحې او د وچې ځمکې ترمنځ ګډه پوله ده یا د اوبو او وچې ترمنځ بېلوونکی حد دی.

**سرچینه**: هغه ځای چې سیند ورڅخه پیلېږي.

**سب تروپیک**:

هغه اقلیم چې په اوړي کې وچه او په ژمي کې مرطوبه او معتدله وي.

**ستراتیژیکه سیمه**

له هغې سیمې څخه عبارت ده چې سیاسي، نظامي او اقتصادي پلوه ځانګړې ارزښت ولري.

**صخره**: د تیګو او ډېرو مجموعې ته ویل کېږي چې له یوه یا څو ډولونو منرالونو څخه منځته راغلې وي.

**طغیان** (مستیدل)

د اوبو ناڅاپي زیاتوالی یا د سیندونو سېلابي کېدلو ته وایي چې د زیاتو اورښتونو یا د واورو د چټکې ویلې کېدنې په سبب رامنځ ته کېږي.

**طول البلد**: هغه کرښې چې د شمالي او جنوبي قطب ترمنځ امتداد لري او په عرض البلدونو عمودي وي.

**طبیعي منابع**: د ګټې اخیستنې وړ منابع چې الله تعالیﷻ هغه د انسانانو په واک کې ورکړي دي، لکه کانونه، حاصل خېزه خاورې، ځنګلونه، د اوبو قوه، سمندري حیوانات او داسې نور.

اوس طبیعي منابع په دوو غوره ډلو لګښتي او نوي کېدونکو (د بیا ګټې اخیستنې) وړ وېشل شوي دي، د بیا ګټې اخیستنې منابع، نوي کېږي او بیا بیا د ګټې وړ وي، لکه له بادونو او لمر څخه لاس ته راغلې انرژي او هغه منابع چې د یو ځلي ګټې اخیستنې وړ دي، لکه د ډېرو سکاره، نفت او طبیعي ګاز.

**عرض البلد**

له استوا کرښې سره موازي دایرې دي چې ختیځ او لوېدیځ لوري لري او د طول البلد په دایرو عمودي وي، لویه دایره

يې د استوا کرښه او ډېره کوچنۍ يې د ۹۰ درجو دايره ده.
**غرب الهند**: دا اصطلاح لومړی ځل د کارابين په سمندرګي کې د پرتو ټاپوګانو لپاره استعمال شوه. دا ټاپوګان له لوی انتيل (کيوبا، بهاما، دومنکين، هايتي) او کوچني انتيل(ترينيداد او توباګو) څخه عبارت دي.
**غرنۍ آب او هوا**: د غرنيو سيمو ځانګړی اقليم دی چې لوړوالی (ارتفاع) په کې مهم رول لري، په دې اقليم کې هوا سړه او معمولاً په ژمي کې واورې او باران اوري.
**فدرال**
د هغو حکومتونو ځانګړتيا ده چې د خپلواکو ايالتونو د يووالي په صورت کې تشکيل شوي وي او په سياسي او نظامي چارو کې د مرکزي حکومت تابع وي.
**قطبي اقليم**: هغه ډول اقليم ته ويل کېږي چې هلته هوا ډېره سړه او کنګل وي. دا ډول اقليم د شمالي او جنوبي قطبي سيمو ځانګړی اقليم دی.
**کانال**: د سيندونو، سمندرونو او سمندرګيو ترمنځ د انسان په وسيله د حمل او نقل د اسانولو لپاره د وچې کيندل دي.
**ګورنرجنرال(فرماندار کل)**:په يوه هېواد يا ايالت کې اداري لوړ مقام دی چې د انګلستان د هم ګټو (مشترک المنافع) هېوادونو په منځ کې تشريفاتي اړخ لري.
**ګلف ستريم**
د تودو اوبو بهير د مکسيکو له خليج څخه له تېرېدو وروسته د کاناډا تر سواحلو پرمخ ځي او بيا يې لوری د اروپا خوا ته بدلون مومي او د شمال لوېديځې اروپا د اوبو د تودېدلو سبب کېږي.
**لويه وچه(براعظم)**
د سمندرونو، سمندرګيو، غرونو ترمنځ لويې وچې ته براعظم وايي، لکه د آسيا، اروپا، افريقا، امريکا، استراليااو اقيانوسيې او انتارکتيکا لويې وچې.
**مدو جذر**
د سمندرونو، سمندرګيو، خليجونو او جهيلونو د اوبو منظم او يا پرله پسې دوره يي پورته کېدل او ښکته کېدل چې د سپوږمۍ او لمر د جاذبې د قوې له امله په ۲٤ ساعتونو کې دوه ځلې تکرارکېږي.
**معتدله سيمه**
داسيمه د شمالي او جنوبي عرض البلدونو د $۲۳\frac{۱}{۲}$ او $٦٦\frac{۱}{۲}$ درجو ترمنځ پرته ده او د کال د څلورو فصلونو شته والی د دې سيمې له مهمو ځانګړتياوو څخه دی.
**مصب**: هغه ځای دی چې هلته د سيندونو اوبه سمندرګيو، سمندرونو، جهيلونو يا لوی سيند ته تويېږي.
**مرستيال**: هغه کوچني سيندونه چې اوبه يې له ښي يا چپ اړخ څخه لوی سيند ته تويېږي.
**مستعمره**: هغه سيمه يا هېواد چې د پردي دولت له خوا نيول شوی وي.
**هم ګټې(مشترک المنافع) هېوادونه**
د هېوادونو ځانګړتياوې چې په يوه ډول سره يې يووالی کړی وي او د يووالي مهمه ځانګړتيا يې اقتصادي عامل دی، لکه د انګلستان د هم ګټو هېوادونو ټولنه.
**وادي** : د دوو غرونو ترمنځ نسبتاً پراخه ساحه ده چې هلته سيند بهېږي او د انسانانو، حيواناتو او نباتاتو د ژوند لپاره يې ښه شرايط برابر کړي وي.
**يخچال**: د همېشني کنګل پنډې او لويې کتلې دي.